

د خوشال خان ختک د زوکړې د څلورسومې کالیزې په ویاړ



# پښتو غږپوهنه او ویپوهنه

## ( فونولوژي ــ مور فولوژي )

لیکوال

پوهنوال محمد صابر خویشکی

١٣٨٠ ل ــ ٢٠٠١ م کال

# پښتو غږ پوهنه او ويپوهنه

## ( فونولوژي _ مورفولوژي )




لیکوال

پوهنوال محمد صابر خویشکی

۱۳۸۰ ل _ ۲۰۰۱ م ال



# ځانګړني


دکتاب نوم : پښتو غږ پوهنه او وییپوهنه

لیکوال : پوهنوال محمد صابر خویشکی

خپرندوی : دافغانستان کلتوري ودې ټولنه ـ جرمني

دخپرونو لړ : ( ۳۲ )

چاپچاری : عبدالغني هاشمي

کمپوز : کاوون کمپیوټر/ جلال اباد افغانستان

کمپوزر : عبدالهادي ښرين

چاپشمېر : ۱۰۰۰ ټوکه

چاپکال : ۱۳۸۰ل ـ ۲۰۰۱ م کال

# دخپرندويې ټولنې يادښت

دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې له ګڼو فرهنګي هدفونو څخه يو هدف دادی چې په پښتو ژبه يوشمېر داسې کتابونه چاپ کړي چې د هېواد په تعليمي او تحصلي نصاب کې شامل وي.

ددې کار ګټه داده چې يوخوبه زده کوونکوته درسي کتاب ورسېږي اوله پرله پسې نوټ اخيستنې به بېغمه شي او بل به زموږ ژبه علمي او تدريسي ارزښت پيداکړي.

دښاغلي پوهنوال محمدصابر خويشکي داعلمي اثر (پښتوغږ پوهنه او وييپوهنه) زموږ دهمدې لړۍ يواثر دی چې دکابل پوهنتون په تحصيلي نصاب کې شامل دی. موږ په داسې حال کې چې ښاغلي پوهنوال استاد محمد صابر خويشکي ته ددې اثر دچاپ له امله مبارکي وايو، هيله لروچې زموږ په ژبه ګڼ شمېر علمي اثار وليکل شي او خپروندويې ټولنې او فرهنګپال افغانان يې دچاپ کار شونی کړي.

په درنښت

دافغانستان دکلتوري ودې ټولنه ـ جرمني

# دموضوعاتو نیو لیک

# لومړنۍ خبرې

پښتو څانګې استادانو د ۱۳۷۵ کال د غبرګولي د مياشتې د ۱۵ نېټې په غونډه کې ماته دنده وسپارله چې د پوهنوالۍ علمي رتبې ته د لوړېدو له پاره د (پښتو فونولوژي - مورفولوژي) تر سرليک لاندې د نورو څانګو له پاره يو درسي کتاب وليکم، نوموړې موضوع د ژبو او ادبياتو پوهنځي دعلمي شورا د (۷۵/۳/۱۵) نېټې په غونډه کې هم تائيد او تصويب شوه.

مادغه موضوع په اوو څپرکو کې وليکله،څرنګه چې درنو لوستونکو ته څرګنده ده پښتو ژبه د آريايي ژبو په سترې کورنۍ پورې يوه اړونده ژبه ده چې د تاريخ په اوږدو کې يې د ګرامري اړخ له پلوه له زاړه پېر څخه تر اوسه پورې ډېر لږ ساده والي موندلی او خپله زړه جوله يې لږ و ډېر خوندي ساتلې ده. د پښتو ژبې هغو زده کونکوته چې مورنۍ ژبه يې پښتو ده او په پښتو خبرې کوي څرګنده ستونزه نه ليدل کېږي که موږ دري ژبې زده کوونکي په نظر کې ونيسو ، دپښتو ژبې د زده کړې په برخه کې له ډېرو ستونزو سره مخامخ کېږي. خو ما د هغو تېرو درسي تجربو په رڼا کې چې په نورو څانګو کې د پښتو ژبې د تدريس په برخه کې لرلې د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې د شاګردانو ستونزې راته ښې څرګندې شوي ، خوله نېکه مرغه چې د څانګې درنو استادانو ماته دنده راوسپارله چې د پورته ستونزو دحل له پاره يو درسي کتاب د پورتني سرليک لاندې وليکم. دادی ګرانو لوستونکو ته دغه ليکنه مخکې ږدم او ددې ليکنې د لاښه کره والي لپاره ددوی مشورو او لارښوونو ته ستر ګې په لار يم.

خو له هر څه نه مخکې د ډېر محترم پوهاند صاحب يمين څخه د زړه له کومې مننه کوم چې له ما څخه يې خپلې عالمانه لارښوونې نه دي سپمولي او

په ډېره سره سينه يې زما ليکنه لوستلې او بشپړه کړې ده. همدارنګه د ښوونې او روزنې پوهنځي د محترم استاد پوهاند صاحب حکيم، د دري څانګې محترم استاد پوهاند صاحب قويم او له محترم استاد پوهنوال جلال الدين خان څخه د زړه له کومې مننه کوم چې خپلې عالمانه لارښوونې يې را څخه نه دي سپمولې.

په درنښت
پوهندوی محمد صابر خويشکی

## سريزه:

دژبې ګرامر د ژبې د جوړښت علمي تشريح ده چې د ژبپوهنې يوه څانګه بلل کېږي.

که څه هم ژبپوهنه يوه نوې پوهه او د شلمې پېړۍ له نوښتونو څخه ګڼل کېږي. خو د ژبپوهنې دا برخه يعنې د ژبې ګرامر پخوانی او اوږد تاريخ لري.

په عمومي توګه ګرامر ليکنې بېلا بېلې مرحلې تېرې کړې دي او ددغو مراحلو په اوږدو کې د بېلا بېلو ميتودونو او طرز العملونو له امله د ګرامر زيات ډولونه منځ ته راغلي دي.

چې په عمومي توګه په لاندې ډول دي.

کلاسيك او دوديز ګرامرونه –پرتليز او تاريخي ګرامرونه –ساختماني –تشريحي او ګزارشي ګرامرونه.[1]

دپښتو ژبې د ګرامرونو په ليکنه کې پخواني دوديز او مروج ميتود دا و چې هر يوه ګرامر ليکونکی به د خپل ذوق او سيلقې په اساس او يا د نورو ژبو د ګرامرونو څخه په تقليد د کليمې ډولونه، د کليمو اشتقاق د هغوی ډلبندي او لړ څه ډېر به د هغوی په تصريف غږېدل.

ددې کار څخه ددوی موخه او هدف دا و چې يو لړ اصول او قواعد لږ ستونکوته وړاندې کړي تر څوددغو قواعدو په رڼا کې دوی پخپلو خبرو او ليکنو کې له تېروتنو څخه وساتل شي دا کار په خپل وخت او دهغه زمان د مطالعاتو په رڼا کې دقدر وړ دی او ددوی دغو ليکنو او څېړنو موږ ته ډېر مواد د راتلونکو څېړنو له پاره پرې ايښې دي. که چېرې موږ د پښتو ژبې په ليکلو شوو ګرامرونو باندې نظر واچوو د تاريخي سير او د هغه وخت او مهال د غوښتنو سره سم د پښتو ژبې په ګرامر ليکنه کې د لاندې ميتودونو څخه

---

(۱) محمد حسين يمين دستور زبان دری. کابل: دژبو او ادبياتو پوهنځی، ۱ مخ

کار اخیستل شوی دی.

## ۱- د عربي پوهانو د میتودونو پر بنا ګرامر لیکنه.

داخو یوه څرګنده او جوته خبره ده چې د اسلام د سپیڅلي دین له خپرېدو سره سم د اسلامي نړۍ د فرهنګ او څېړنو لړۍ د نړۍ د زیاتره هیوادونو او په ځانګړې توګه هغه هیوادونو چې د اسلام په سپیڅلي دین مشرف شوي وو په چټکتیا سره پرمخ روانه وه.
همدارنګه زموږ پوهانو او څېړونکو د اسلام د سپیڅلي دین له خپرېدو وروسته د هر علوم او د ژبني فتوان د عربي پوهانو په پیروۍ لیکلي دي او حتی د هغوی په وده او تکامل کې ستره ونده هم اخستې ده نو پر دې بنا زموږ ګرامر لیکونکو هم د ګرامر د څېړنې او لیکنې په برخه کې د عربي ژبې له صرف او نحوې څخه پیروي کړې ده او دغه لیکونکو د عربي صرف او نحوې کتابونه د خپلو څېړنو او مطالعاتو اساس ګرځولي دي. خو یوه خبره چې باید له یاده ونه باسو هغه داده چې پښتو ژبه د هندوارو پایي ژبو د سترې کورنۍ یوه ژبه ده او د دغې ژبې جوړښتي نظام د عربي ژبې ساختماني څخه چې د سامي ژبو په سترې کورنۍ پورې اړه لري توپیر لري.

## ۲- د غربي پوهانو د میتود پر بنسټ ګرامر لیکنه:

په معاصره دوره کې کله چې پښتانه څېړونکي او پوهان د غربي تمدن او فرهنګ سره اشنا شول او په ځانګړې توګه هغو مستشرقنیو چې د پښتو ژبې او ادبیاتو سره بلدتیا پیدا کړه او د پښتو ژبې او ګرامر په برخه کې یې څېړنې وکړې نو د پښتو ژبې په ګرامر لیکنه کې دغه میتود رواج وموند.
په اروپا کې لومړنی قوم چې په ګرامر لیکنه یې پیل کړی دی هغه یونانیان دي. دغو پوهانو د انساني ژبې په مبتدا، او د تفکر او خبرې کولو

پراړیکو باندې فلسفي بحثونه کړي دي او د فلالوژۍ اوسنۍ اصطلاح هم چې د (ژبې په علم) باندې اطلاق کېږي دوی وضع کړې ده.[1] د روم د تمدن په دوره کې رومي پوهانو د لاتیني ژبې د ګرامر په لیکنه کې د یونانیانو څخه پیروي کړې ده. رومیانو عقیده درلوده چې ددغو قاعدوي ګرامرونو په لیکلو سره به بې عیبه وینا او لیکنه خلکو ته زده کوي. په منځنۍ پېړۍ کې نورو اروپایي پوهانو هم په ګرامر لیکنه کې ددغه میتود څخه کار اخیستلی دی.

ارسطو د افلاطون پر خلاف عقیده درلوده چې ژبه یوه فطري پدیده نه بلکې یوه ټولنیزه او اتفاقي پدیده ده. ارسطو لومړنی سړی چې د کلیمو تصنیف او ډلبندي یې منځ ته راوړې ده او دکلام او وینا ټوکونه یې په درو برخو (نوم -فعل او حرف) باندې ویشلي دي. رومي ګرامر لیکونکو هم د ژبې د قواعدو او تشریح په برخه کې د یوناني ګرامر لیکونکو له اصولو او میتودونو څخه پیروي کړې ده، دغه رنګه ګرامر لیکنه په ځپل وار سره عربي ګرامر لیکونکو هم رواج کړه لکه چې وینو د عربي ژبې څېړونکو او پوهانو د خپلې ژبې د جوړښت اجزاوې په همدغه (نوم فعل او حرف) وېشلي دي.

## ۳-دژبپوهنې داساساتو پر بنا ګرامر لیکنه:

دغه میتود د معاصرې ژبپوهنې د نوو نظریاتو او کشفیاتو پر بنا منځ ته راغلی دی. او د شلمې پېړۍ له پیل څخه وروسته په غربي هېوادونو کې رواج وموند او د وخت په تېرېدو سره د علمي اکتشافاتو او څېړنو په رڼا کې په معاصره ژبپوهنه کې عمومیت پیدا کړ.

ددغه میتود پیروان عقیده لري چې ((هره ژبه د ځانګړي ساختماني او دستوري نظام لرونکې ده)) او دوی عقیده لري چې (( هره ژبه باید بالذات او دبلې ژبې د جوړښت په نظر کې نیولو څخه پرته مطالعه او تشریح شي)) او

(۱) محمد رحیم الهام ،روش جدید در تحقیق دستور زبان دری ، کابل: پوهنځی ادبیات مطبعه دولتي ۱۳۴۹ ،۴- مخ

داهم باید له یاده ونه باسو چې پرتلیز (مقایسي) ګرامر هغه وخت پیل شو چې پوهانو ته د قبل المیلاد د څلورمې پېړۍ په حدودو کې د پاڼیني ګرامر لاس ته ورغی . په اتلسمه پېړۍ کې په اروپا کې پوهانو او څېړونکو د سانسکریت ژبه زده کړه. سانسکریت ژبې سره داروپائیانو بلدتیا په ګرامر لیکنه کې نوی باب پرانیست . ځکه پوهانو ته دا جوته شوه چې د سانسکریت او پخوانی یوناني او لاتیني ژبوتر منځ ګرامري او هم لغوي جوړښتونه ښکاره مشابهتونه او ورته والی لري نو ددغو مشابهتونو او د نوو څېړنو په نتیجه کې پرتلیزې څېړنې پیل شوې همدا ډول د ژبې پرتلیزې مطالعې سره جوخت د ژبې تاریخي مطالعه هم رواج شوه یو ډله پوهانو په دغه وخت کې د ژبو په تاریخي مطالعه پیل وکړ. ددغو مطالعاتو په نتیجه کې د ژبې درې ګونې ( کلاسیک ، منځنی او معاصر) دورې تشخیص شوې.

د ژبې مطالعه د شلمې پېړۍ په پیل کې یوې نوې مرحلې ته راوګرځېده چې ځینې پوهان دې نتیجې ته ورسېدل چې د ژبې مطالعه له دوو بېلا بېلو اړخونو څخه کېدای شي ، یوه د تاریخي اړخ له پلوه او بله د تشریحي اړخ له پلوه.

ځکه ژبه یوه داسې پدیده ده چې د تاریخ په اوږدو کې تغییر کوي اوهمدغه تغییرات چې په یو ټاکلي وخت او زمان کې کوي د ټاکلو قوانینو او ضوابطو په داخل کې عمل کوي

هرکله چې د ژبې د اوښتنې ( تغییر) قوانین له یوې مرحلې څخه و بلې مرحلې ته مطالعه شي د تاریخي ژبپوهنې په نامه یادېږي او له بله پلوه که چېرې د ژبې قوانین په ټاکلې زماني مرحله کې مطالعه او وڅېړل شي د تشریحي ژبپوهنې په نامه یادېږي او د ژبې ګرامر د تشریحي پوهنې له مباحثو څخه ګڼل کېږي یعنې د ژبې ګرامر یو تشریحي علم دی نه هدایتي او قاعدوي.

له پورتنیو لنډو څرګندونو څخه دا نتیجه لاس ته راځي چې د پښتو ژبې ګرامرونه کوم چې تر اوسه پورې لیکل شوي دي ددغو پورتنیو میتودونو څخه

اغېزمن ښکاري.

ځيني ددغو ګرامرونو څخه د عربي ژبې د ګرامرونو په تقليد او پيروی ليکل شوي دي چې البته د خپل وخت د څېړنو او مطالعاتو پر بنا د قدر وړ دي. خو ځيني نور داسې ګرامرونه هم شته چې د نوې ژبپوهنې د اصولو او معيارونو مطابق ليکل شوي دي،

خو کومه ليکنه چې اوس ګرانو لوستونکو مخې ته پرته ده. په دې ليکنه کې هڅه شوې ده داسې يو درسي کتاب ترتيب او وړاندې کړی شي چې ددری ژبې ورونو مشکل د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې څه نا څه رفع شي.

د ډېر وکلونو راهيسې چې د ژبو او ادبياتو په پوهنځي کې د تدريس دنده په غاړه لرم او په ځانګړي توګه هغه وخت چې ما د پښتو ژبې تدريس په نورو څانګو کې په غاړه درلود د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې د زده کوونکو مشکل راته ځرګندېده او په دې فکر کې وم چې دغه مشکل به څنګه په نسبي توګه حل کړم خو کله چې د څانګې درنو استادانو فيصله وکړه او ما ته يې دنده راوسپارله چې زه به دوی ته د پښتو ګرامر ( فونولوژي —مورفولوژي) تر سرليك لاندې يو درسي کتاب وليکم نو ما دخپلو کلو کلو د تدريس د تجربو څخه په ګټې اخستلو سره دغه کتاب وليکه.

درنو لوستونکو ته ځرګنده ده چې پښتو ژبه يوه ځان ساتې او محافظه کاره ژبه ده. په دې معنی چې دې ژبې خپله لرغونتيا او ځانګړيتوب ـ تر اوسه پورې څه ناڅه ساتلي دی او دري ژبې د تاريخ په اوږدو کې د کلتورونو د امتزاج په لړ کې دغه ځانګړتياوې له لاسه ورکړې دي او تغيرات يې منلي دي چې د بېلګې په توګه د جنس مساله ده . د جنس له پلوه د فعل مطابقت له فاعل او مفعول سره د عدد او معدود مطابقت ، د صفت او موصوف مطابقت همدارنګه له فاعل او مفعول سره د قيد مطابقت ، داسې مسايل دي چې دری ژبې د پښتو ژبې د زده کړې په وخت کې له ستونزو سره مخامخ کېږي . له بله پلوه د نوم اوړنې بڼې د دوی اصلي او غيراصلي حالتونه هغه مسايل دي چې په دغه ليکنه کې د کره مثالونو په ورکولو سره تشخيص او څېړل

شوي دي.

د فعلو نو په برخه کې هم په کافي اندازه کار شوی دی . ما په دغه کتاب کې کم او زیات دري/ دري نیم سوه فعلونه راغوند کړي دي او د هغوی د مورفولوژیکي ځانګړتیاوو په پام کې نیولو سره مې ډلبندي کړي دي او په مثالونو کې مې ښودلي دي.

چې البته دغه کار دري ژبې ته د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې مرسته کوي.

ښه به دا وي چې د کتاب د ټولو محتویاتو لوستنې ته ګران لوستونکي راوبولم او ددوی راتلوونکي قضاوت ته سترګې په لار یم.




# لومړی څپرکی

# ژبه او ګرامر

## ۱- ژبه څه راز پدیده ګڼل کېږي؟

ژبه په واقیعت کې یوه ټولنیزه ، اکتسابي او ثقافي پدیده ده ، نه عضوي ، فطري او طبیعي . ددغې موضوع د ښه روښانتیا له پاره چې ژبه یوه طبیعي او فطري پدیده نه ، بلکې یوه ټولنیزه پدیده ده ، یو مثال راوړو: د ماشوم په لاره تګ یو طبیعي واقعیت دی ، د لارې تګ په عملیه کې انساني ټولنیز عادتونه ، دودونه یعنې ثقافت کوم نقش نه لري ، ځکه د ماشوم په وجود کې ځینې ځانګړي عناصر او مغلق عوامل په انفرادي توګه وجود لري چې د بیولوژي د علم له نظره د حیاتي توارث په نامه یادېږي، د همدغو عواملو له امله د ماشوم په بدن کې یو سلسله عصبي او عضلي فعالیتونه صورت نیسي او ددې سبب ګرځي چې ماشوم د ګرځېدو استعداد پیداکړي. که څه هم دوینا او خبرې کولو استعداد په انساني وګړوکې جبلي دی ولی دغه استعداد په فطري او طبیعي توګه وده نه کوي.

البته د خبرې کولو استعداد په شرایطو پورې اړه لري چې یوازې او یوازې د انساني ټولنې پواسطه رامنځ ته کېدای شي. که چېرې یو انسان د ټولنې څخه لرې کړو په لاره تګ زده کوي خو د خبرې کولو زده کړه د ټولنې څخه بهر امکان نه لري . همدارنګه که چېرې یو نوی زېږېدلی ماشوم د خپل زېږنځای څخه یو پردي زېږنځای ته یوسو ، د خپل زېږنځای د خلکو په شان تګ کوي خو خبرې کول یې توپیر لري یعنې د هماغه خلکو ژبه زده کوي چې د هغو سره

ژوند کوي.

نو په پای کې ویلای شو چې ژبه د نښنو د مجموعې په (توګه) ښه یوازې انسان پخپله ټولنه کې زده کوي چې د هغوی په مرسته خپل فکرونه، غوښتنې، خیالات او احساسات خپلو همځېلو ته څرګندوي او په دې توګه د پوهولو او راپوهولو وسیله ګرځي.

په عمومي توګه د ټولنې دا فرادو تر منځ د مفاهمې هر ډول وسیله او اړیکې ژبه بلل کېږي [۱] که دغه اړیکې په اشاروي توګه دي که د نښنو او نورو لارو په صورت خو ژبه په خاص مفهوم سره د یو لړ اختیاري ویزو او اوریزو سبمولونو (علایمو) یوه مجموعه ده چې هر یو سیمبول یې زموږ د یو ذهني انځور نماینده ګي کوي. دا انځورونه د انساني چاپېریال او مهال ځیزونه او ځانګړتیاوې، پېښې او کړه وړه را اخلي او په دې توګه ژبه د انسانانو تر منځ د پوهولو یوه اله او وسیله ګرځي. [۲] یا په بل عبارت ژبه د غږیزو او اوریزو نښنو یوداسې کسبي او اتفاقي سیستم دی چې د یوې ژبې وګړي یې یوله بله د پوهولو له پاره پر ژبه راوړي او یو بل ته اوروي. په دې ځای کې له سیستم څخه مطلب دادی چې هره ژبه ځانته نظام او مشخص قواعد لري. صوتي (غږیز) په دې معنی چې د هرې ژبې اصلي او اساسي صورت وینا او خبرې کول دي. اکتسابي په دې معنی چې ژبه فطري یا طبیعي پدیده نه ده بلکې هغه کسب او زده کېږي. هغه هم په ټولنه کې. نښې او سیمبولونه په هره ژبه کې غږیز دي هغه په دې معنی چې د مفاهمې د و سایلو نور ډولونه لکه اشاره یي ژبه او د سیمبولونو ژبه د ژبې د علمي تشریح له پلوه او په خاص مفهوم سره ژبه نه بلل کېږي. [۳]

---

۱-محمد حسین د ستور زبان دری کابل. کابل پوهنتون، ۱۳۶۵، ۲ مخ

۲-مجاور احمد زیار پښتو پښویه. کابل کابل پوهنتون، د لوړو زده کړو چاپخونه، ۱۳۶۲ و ۱۲۰ مخ

۳- محمد حسین دستور زبان دري کابل: کابل پوهنتون ۱۳۶۵. ۳

په ټولو ژبو کې دوینا واحد جمله ده او داد ژبې جوړوونکي عناصر دي چې عبارت دي له : جملې، کلیمې ، مورفیم، او فونیم څخه .

## ۲-۱ پښتو ژبه :

دا وسني افغانستان په خاوره کې دننه او د هغه په ګاونډیو نږدې سیمو کې ارکیا لوژیکي پلټنو او څېړنو او د هغو نتیجو څېړونکو ته دا وښودله چې افغانستان د لرغوني آریایي قومونو ځانګو او ټاټوبی وبولي.

تاریخي یو لړ موثق او څرګند آثار ددې شاهدي ورکوي چې د آریایي قبایلو لومړی ټاټوبی بلخ او د هندوکش دواړه خواوې دي او له دغه ځایه لومړی هندي اریایي قبایلو د ختیځ او ایراني اریایي قبایلو ورپسې لویدیځ خواته مهاجرت وکړ او له دغه ځایه اریایي قبایل په څلورو ګروپو: هندي، ایراني، مرکزي یا باختري او دا ړدي وویشل شول. څرنګه چې هندي اریائیانو نسبت ایراني قبایلو ته څو پېړۍ پخوا ( تقریباً دوه زره قبل المیلاد) مهاجرت وکړ او ایراني قبایلو څو پېړۍ نور هم په باختر کې پاتې شول ځکه نو د باختري ژبو خپلوي دهندي ژبو په نسبت د ایراني ( پیرسیکو/ میدیکو) ژبو سره زیاته ده. له دغه ځایه دو اړه ګروپونه کله کله د آریایي او درې واړه د هندو آریایي په نامه هم یادېږي.(*)

د آریایي ژبو وېش د تاریخ د زده کړې له پلوه له هغې مرحلې پیل کېږي چې هندوآریایي ټولنې سره بېلېږي . د میلاد څخه تقریباً دوه زره کاله پخوا د آریائیان ( باختریان –پارسیان) د هندي آریایي ټولنې څخه جلا کېږي. (**)

---

مخ.

(*) دوست شینواری د افغانستان ژبې او توکمونه : کابل ښتنو ټولنه دولتي مطبعه ۱۳۵۴ ، ۶ مخ

(**) همدغه اثر ۱۲ مخ.

## د اريايي ژبو څانګې:

معاصره ژبپوهنه د تاريخي مقايسوي ژبپوهنې په حکم اريايي مړې او ژوندۍ ژبې او لهجې په دوو لويو لويو څانګو وېشي چې هره يوه يې بيا دوه دوه ښاخونه لري.

لومړۍ باختري. الف. جنوبي باختري لکه ساکي ، پښتو ، او رمړي او پاميري ژبې.

ب. شمالي باختري لکه سوغدي ، يغنوبي ، خوارزمي ، الياني ، اوسيتي.

دويم : ايرانيَ ، الف، خبولي : لکه زړه پارسي منځنۍ پارسبي، نوې پارسي، تاتي، بختياري ، کومزاري.

ب: شمالي ( ميدی) : کوردي ، بلوچي ، تاليشي،غلياني (*)

بايد وويل شي چې ددې ژبو دايو ډول وېشنه ده، خو پوهانو دا وېشنه په ډول ډول کړې ده پښتونن د نړۍ د نړدې هغو پنځو سو معتبرو ژبو په کتار کې ولاړه ده چې بډاى ادبيات لري او د بشري زياتو وګړو د ليك او لوست ژبې دي لکه چې د ايراني ګروپ د ژبو په لړ کې يوازې دری دليك او لوست ژبه ده په باختري ګروپ کې يوازې پښتو د ليك او لوست ژبه ده.

پښتو د توکم په باب پخوانۍ نظريه داوه چې پښتانه ګوندې د سامي توکم ( بني اسرائيل ) څخه دي چې دا نظريه د ګورګانيانو له درباره نشأت کوي . ددغې نظريې لومړی څرك په (مخزن افغاني) کې راغلی دی نعمت الله هروي جهانګير پاچا د دربار واقعه ليکونکی چې غالباً ( ۱۰۲۰ هـ ق ۱۶۱۲)

(*)دوست محمد دوست د افغانستان ژبې او توکمونه کابل: پښتو ټولنه ، دولتي مطبه، ۱۳۵۴ کال. ۱۳-۱۴ مخونه

کې ليکلې دي ليدل کېږي . همدغه نظريه بيا دا فضل خان ختك په تاريخ ، مرصع د حافظ رحمت خان (خلاصه النساب) خورشيد جهان دقاضي عطا الله د پښتو تاريخ سرويليام جونز او راورتي او نورو هم تعقيب کړې ده . دغه نظريه چې پښتانه سامي نژاده دي تفصيل يې د پښتنو د تاريخ په بېلو بېلوآثارو او کتابونو کې راغلې دی د موجوده پوهنې او دتاريخي مقايسو ژبپوهنې له نظره دغه نظريات له افساني څخه زيات ارزښت نه لري . بشر چې د تاريخي واقعاتو او پېښو د هر تياره اړخونه د فني وسايلو په مرسته روښانه کړي دي . د نولسمې پېړۍ له پيله دا نظريه ورته پيداشوې ده چې پښتانه دبشري لويو کورنيو په ولکه کې دهندي اروپايي او په هغه کې اريايي باختري توکم دي دا نظريه د پښتو نخوا د لرغونو تاريخي اسنادو او دنورو ژبو سره دپښتو د پرتليز ې څېړنې په رڼا کې ثابته شوې ده.

## ۳-۱ ګرامر: Grammer

اوسنی ګرامر د تشريحي ژبپوهنې ستره څانګه ده چې ديوې ژبې يا دهغې ژبې د معياري بڼې د زده کړې د اسانتيا لپاره لوستل کېږي . د ګرامر اصطلاح د لاتيني او يوناني ژبې ګراماتيکي Grammatike له ريښې څخه راوتلې ده ، په انګرېزي ژبه کې ګرامر Grammer اوپه روسي ژبه کې ګراماتيکه دی.

ګرامر د ژبپوهنې هغه څانګه ده چې د ژبې مورفولوژيك (صرفي) اونحوي (سينتکس) جوړښت او ساختمان تر څېړنې لاندې نيسي يعنې د يوې ژبې د لغاتو د تغير شکلونه ، د هغوی ترکيب ، د جملو جوړښت او څرنګوالی مطالعه اوتشريح کوي . په ګرامري څېړنو کې ژبه د قوانينو تابع نه ګرځوله کېږي، بلکې ګرامر د ژبې قواعد څرنګه چې د هغې اصلي ويوونکي او غږېدونکي استعمالوي راباسي او تشريح کوي يې. په لنډه توګه ويلی شو چې ګرامر د يوې ژبې د رغاونې او ساختمان سيستم ترکتنې لاندې نيسي هره ژبه

ځانته ګرامري قوانين او لارې چارې لري نو ځکه د ژبې د ګرامرپه ليکنه کې خپله د هماغې ژبې قواعد او اساسات غوره ګڼل کېږي . ګرامر دژبې علمي او منظمه مطالعه ده.

دعلمي مطالعې څخه مطلب د يو منطقي طرزالعمل له تطبيق څخه عبارت دی. علمي څېړنه او مطالعه نه يوازې په طبيعي علومو پورې اړه پيدا کوي بلکې په ټولو علومو او حتی په ورځني موضوعاتو هم ارتباط پيدا کوي نو په دې توګه معاصر ګرامر ليکونکي د داسې ګرامر په طرحه لاس پورې کړي چې هغه د ژبې د عمليې يوه بشپړه منطقي تشريح ده د ژبې ګرامرونه د بېلابېلو ميتودونو او تيوريو له مخې زيات ډولونه لري چې په عمده توګه په درې کټګوريو وېشل کېږي.

١- کلاسيك او دوديز ګرامرونه.

٢- پرتليزه تاريخي ګرامرونه.

٣- تشريحي او ساختماني ګرامرونه.(*)

معاصر ګرامر ليکونکي هڅه کوي چې ژبه په هغه ډول تشريح کړي ځنګه چې ده. دوی د علمي څېړنو اومطالعاتو له مخې د يوې ژبې د قواعدو تطبيق پر بله ژبه باندې سم نه بولي . ځکه هره ژبه ځانته بېل بېل خصوصيات او ځانګړتياوې لري او نشو کولی د يوې ژبې اساسات پربله ژبه باندې سل په سل تطبيق کړو. د ژبې د ګرامر د سمې او ښې څېړنې او مطالعې لپاره لازمه ده چې د هغې ځانګې په سمه توګه تشخيص کړو، لکه ځنګه چې يوه ژبه د جملو او فقرو له ترکيب څخه او جمله د عباراتو ،کليمو او مورفيمونو له ترکيب او ترتيب او همدارنګه کليمې او مورفيمونه د انساني غږونو له ترکيب او ترتيب څخه منځ ته راځي . نو ديوې ژبې همدغه غږونه ، کليمې، مورفيمونه ، عبارات او جملې د خاصو او ځانګړو قوانينو او قواعدو لرونکي دي چې د يوې ژبې ساختماني نظام جوړوي . نو په دې توګه هرکله چې موږ وغواړو د يوې ژبې جوړښت تشريح کړو نو په حقيقت کې د ژبې غږيز

---

(*)محمدحسين يمن دستور زبان دری کابل : کابل پوهنتون ۱۳۶۵ل ۱۰ مخ

جوړښت ، د کليمو او مورفيمونو جوړښت او دجملې جوړښت مطالعه کوو، نو په دې توګه د ژبې مطالعه په لاندې څانګو وېشل کېږي.

۱- فونو لوژي یا غږيز ساختماني نظام .
۲- مورفولوژي یا صرفي ساختماني نظام.
۳- سنيټکس یا نحوي ساختماني نظام.
۴- مورفو فونيمکس یا د فونيم د بدلون نظام.
۵- سيما نتکس یا ديوې ژبې د معنوي خواوو مطالعه.

## ۱-۴ د موضوعاتو لنډيز او پوښتنې:

۱- ژبه په واقعيت کې يوه ټولنيزه ،اکتسابي اوثقافي پديده ده، نه عضوي، فطري او طبيعي . د ژبې د پيدايښت تاريخ د بشر د پيدايښت او د ټولنو او ډلو د جوړېدو سره اړه لري.

۲- په عمومي توګه د ټولنې د افرادو تر منځ هر ډول وسيله اواړيکې ژبه بلل کېږي. که دغه اړيکې په اشاروي توګه وي او که د نښو او نورو علايمو او لارو په صورت . خو ژبه په خاص مفهوم سره د يو لړ اختياري ويېزو او اوريزو سيمبولونو مجموعه ده چې هر يو سيمبول يې زموږد ذهني انځور نماينده ګي کوي، دا انځورونه د انساني چاپېريال اومهال څېزونه او څانګړتياوې پېښې او کړه وړه را اخلي او په دې توګه ژبه د انسانانو ترمنځ د پوهولو او لاپوهولو يوه اله او وسيله ګرځي.

۳- د اوسني افغانستان په خاوره کې دننه او دهغه په ګاونډيو نږدې سيمو کې څېړنو او پلټنو دا وښودله چې افغانستان د لرغونو اريايي قومونو څانګواو ټاټوبی وبولي.

۴- معاصره ژبپوهنه د تاريخي مقايسوي ژبپوهنې د يوې نظريې په حکم اريايي مړې او ژوندۍ ژبې او لهجې په دوولويو څانګو وېشي چې هره يوه يې بيا دوه دوه ښاخونه لري.

لومړی باختري : الف: جنوبي باختري لکه ساکي ، پښتو ، اورمړي او پاميري ژبې.

ب : باختري شمالي : سوغدي ، يغنوبي، خوارزمي ، الياني ، اوسيتي،

دويم : ايراني : الف : جنوبي لکه زړه فارسي، منځنی فارسي، نوې فارسي، تاتي، بختياري ، کومژاري.

ب: شمالي ( ميدي) کوردي ، بلوچي،تاليشي، غلياني ،

۵- دغه نظريه چې پښتانه سامي نژاده دي ، تفصيل يې د پښتنو د تاريخ په بېلو اثارو او کتابونو کې راغلی دی . دموجوده پوهنې اوتاريخي مقايسوي ژبپوهنې له نظره دغه نظريات له افسانې زيات ارزښت نلري.

۶- ګرامر د ژبپوهنې هغه څانګه ده چې د ژبې . مورفولوژيکي او نحوي جوړښت او ساختمان تر څېړنې لاندې نيسي. يعنې د يوې ژبې د لغاتو د تغير شکلونه ، د هغوی ترکيب ، دجملوجوړښت او څرنګوالی مطالعه او تشريح کوي.

۷- په ګرامري څېړنوکې ژبه د قوانينو تابع نه ګرځوله کېږي بلکې ګرامر د ژبې قواعد څرنګه چې دهغه اصلي ويوونکي او غږېدونکي استعمالوي راباسي او تشريح کوي يې.

۸- هره ژبه ځانته ګرامري قوانين او لارې چارې لري ، نوځکه د ژبې د ګرامر په ليکنه کې خپله د هماغې ژبې قواعد او اساسات غوره ګڼل کېږي.

۹-د ژبې ګرامرونه د بېلابېلو ميتودونو او تيوريو له مخې زيات ډولونه لري چې په عمده توګه په درې کټګوريو وېشل کېږي.

الف : کلاسيك اودوديز ګرامرونه.

ب: پرتليز تاريخي ګرامرونه.

ج: تشريحي اوساختماني ګرامرونه.

۱۰ دژبې د ګرامر د سمې او ښې څېړنې او مطالعې لپاره لازمه ده چې د هغه څانګې په سمه توګه تشخيص کړو لکه څنګه چې يوه ژبه د جملو او فقرو

له ترکیب څخه اوجمله د عباراتو ،کلیمو او مورفیمونو لـه ترکیب او ترتیب څخه اوهمدارنګه کلیمې مورفیمونه د انساني غږونو له ترکیب او ترتیب څخه منځ ته راځي ، نو د یوې ژبې همدغه رغونه ، کلیمې ، مورفیمونه ،عبارات او جملې د خاصو اوځانګړو قوانینو او قواعدو لرونکي دي چې د یوې ژبې ساختماني نظام جوړوي.

۱۱نو په دې توګه د ژبې مطالعه په لاندې څانګو وېشل کېږي.

۱ فونولوژي یا غږیز ساختماني نظام.

۲ مورفولوژي یا صرفي ساختماني نظام.

۳ سنیټکس یانحوي ساختماني نظام.

۴ مورفو –فونیمکس یا د فونیم د بدلون نظام.

۵ سیما نتکس یاد یوې ژبې د معنوي خواوو مطالعه.

## پوښتنې:

۱ ژبه څنګه یوه پدیده ده؟

۲ ژبه تعریف کړئ؟

۳- ایا ژبه یوه طبیعي اوفطري پدیده ده کـه اجتماعي او اکتسابي ؟ د مثال سره یې واضح کړئ.

۴-د اریائیانو لومړنی مرکز کوم ځای دی؟

۵-د اریایي ژبو څانګې په لنډه توګه تشریح کړئ؟

۶-د پښتو د توکم په باب نظریات چې پښتانـه د سامي اقوامو لـه جملې څخه دي د تاریخي مقایسوي ژبپوهنې لـه نظره دغـه نظریات علمي دي او که نه؟

۶-ګرامر د ژبې د کومو برخو څخه بحث کوي ؟

۸- اوسنی ګرامر ژبپوهنې په کومه څانګه پورې اړه لري.

۹- ایا داسمه ده چې ژبه د قوانینو تابع وګرځول شي ؟ که د هغې ژبې دویو ونکو او غږوېدونکو د وینا تابع شي؟

۱۰ - د ژبې ګرامرونه د بېلابېلو میتودونو او تیوریو له مخې. په کومو ډولو وېشل کېږي؟ په لنډه توګه یې وواياست.

# دويم څپرکی

# پښتو فونو لوژي

فونولوژي د ګرامر د مقدمې په توګه هغه برخه ده چې يوازې ارزښتناکه غږونه (فونيمونه) تر څېړنې لاندې نيسي. دا خو څرګنده خبره ده چې هر انسان کولی شي بې شمېر زيات غږونه تر خولې وباسي او همدارنګه اواز وروسته له يو څه تمرين څخه په ډېر اسانۍ ادا کړي او هره ژبه کې محدود شمېر اوازونه استعمال کړي. که چېرې د يوې خاصې ژبې اوازونه د هغوی رابطې او خصوصيات چې د هغې ژبې د اوازونو او غږونو سيستم منځ ته راولي تر څېړنې او بحث لاندې ونيول شي، دغه څېړنې او بحث په فونولوژي يا فونيمکس پورې اړه پيدا کوي.

د ژبپوهنې دغه برخه يوه نوې او تازه موضوع ده چې د شلمې پېړۍ په پيل کې په دغه برخه کې نوي علمي څېړنې او مطالعات وشول. ځکه پخوا داسې فکر کېده چې توري (حروف) د ژبې يا دنيا بنسټ دي خو اوس دا ثابته شوه چې ژبه د انساني غږونو څخه ترکيب او جوړه شوې ده. همدغه انساني غږونه چې د يوې ژبې جوړونکي عناصر تشکيلوي، فونيم (اوازي واحد) بلل کېږي که څه هم دغه غږيز واحد په يوازې توګه بې معنی دی خو د کليمې په منځ کې خپل ما نيز نقش افاده کوي.[1]

(1) محمد حسين يمين دستور زبان دري کابل: کابل پوهنتون ۱۳۶۵، ۱۵مخ.

## ۱-۲ فونیم څه ته وايي ؟

فونیم یا اواز ( واج –واك ) د ژبې تر ټولو کوچنی غږیز عنصر دی چې په خپله کومه معنی نه لري بلکې په ما نیزو کلیمو کې ما نیز توپیر پېښوي.

د بېلګې په توګه / ت/ په پښتو کې یو اواز دی چې یو لغت لکه / تور / له بل لغت / پور / څخه توپیر کړی دی [۱]

## ۲/۲ فونیم او ګرافیم:

ګرافیم د فونیم ( اواز ) لیکلې شوې بڼې ته وايي ، یا په بل عبارت هغه د لیدو وړ رسم دی چې د یوه اواز ښکارندویي کوي.

الفبا دهغو ټولو تورو یوې ډلې ته وايي چې د یوې ژبې د ټولو اوازونو انځورونه کوي یا په بل عبارت دیوې ژبې د اوازونو رسم یا شکل افاده کوي چې په لیك کې ترې کار اخیستل کېږي. د ژبې د مطالعاتو په ساحه کې د / توري / د کلیمې پر ځای اوس اوس زیات د ګرافیم علمي اصطلاح استعمالوي.

## ۲-۳ پښتو فونیمونه او دهغوی ډولونه:

پښتو ژبه له ۳۶ غږونو (اوازونو ) څخه جوړه ده چې په لاندې ډول دي:

### ۱-۳-۲ خپلواك (واول vawel غږونه :

هغه غږونو ( اوازونو ) ته ویل کېږي چې د تلفظ کولو په وخت کې صوتي غړي په تماس کې نه وي او دهوا په جریان کې کوم بندیزنه پېښېږي او د تلفظ په وخت کې ژبه ، شونډې او نور صوتي غړي د بېلا بېلو حرکتونو له امله بېل بېل شکلونه غوره کوي.

---

(1)مجاور احمد زیار ، پښتو پښویه . کابل : کابل پوهنتون د لوړو زده کړو چابخونه ۱۳۶۲ ، ۱۴ مخ.

همدارنګه د پښتو په الفایي سیستم کې د څرګند واو / ū / او اوږد واو /o / لپاره هم یو ډول ګرافیم / و / کارول شوی دی چې البته د ژبې د زده کړې په برخه کې له ستونزو څخه خالي نه ده . خوله نېکه مرغه د / ā / = آ ، څرګنده / ي = i / اواوږده / ې = e ) په برخه کې دغه ستونزه حل شوې ده او نښې ورته وضع شوي دي.

## ۲-۳-۲ بېواك ( كانسونت Consonant ) اوازونه :

هغو اوازونو ته ويل كېږي چې د تلفظ كولو په وخت كې د غړيزو غړو د تماس له امله د هوا په جريان كې بنديز ( انسداد ) پېښېږي يا په بل عبارت هغو اوازوته ويل كېږي چې له خولې څخه دراوتو پروخت د سا هواله بنديز سره مخامخېږي.

| پښتو مروجه الفبا | لاتين يا فونيميكه الفبا | مثالونه |
|---|---|---|
| ۱-ب / | / b/ | لكه بڼ، بڼوال، باران |
| ۲- پ/ | / p/ | لكه پند ، پوپل، توپ |
| ۳- ت / | / t̪ / | تور -تالو/ توت |
| ۴- ټ/ | /t/ | ټول- پلټل-مټ |
| ۵- ج / | /j/ | جوړ/ ناجوړ/ تاج |
| ۶- ځ / | /ǯ/ | ځمكه/نانځكه -ورځ |
| ۷ -چ / | / č/ | چار/ مچ/ پچه |
| ۸-څ/ | /c / | څادر/څخوبی پايڅه |
| ۹ -خ / | / x / | خواږه -يخ/ اخ |
| ۱۰-د / | / d/ | دود/ درد -پند |
| ۱۱- ډ / | / ḍ/ | ډكر/ ډاډ/ هډ |
| ۱۲ -ر/ | / r/ | رامبېل/ تېر/ اوبه |
| ۱۳ -ړ/ | / ṛ / | ړنګ/ترل/ويجاړ |
| ۱۴ -ز / | / / z | زړه -تازه/ راز |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۵ / ژ / | / ž / | ژوند- لژند-روژه |
| ۱۶- / ږ / | / ẓ / | ږمنځ -ږلی-کوږ |
| ۱۷ / س/ | / s / | سل- لس- اس |
| ۱۸- / ش/ | / š / | شل- لشل- شپه |
| ۱۹- ښ/ | / ṣ / | ښه- واښه- چنګاښ |
| ۲۰ / غ / | / ğ / | غر -تغر- باغ |
| ۲۱- / ك / | /k / | کور- کرکیله- تاك |
| ۲۲- ګ/ | / g / | ګیله -بګی -پانګ |
| ۲۳ / ل / | / l / | لاری -لار- خنګل |
| ۲۴ / م/ | /M / | موږ- بامل- بام |
| ۲۵ / ن / | /N/ | نن- پرون -اسان |
| ۲۶/ ڼ / | / Ṇ / | بانه -کوڼ- پنه |
| ۲۷- / هـ / | Ḥ // | هلك- بهاند- مهال |

په پورته (۲۷) بېواك اوازونو کې اته د پښتو خاص اوازونه دي چې په لاندې یوه جمله کې داسې خلاصه کېدای شي (کانه د ډنګرمسږه ، غوښه ټوله څلور ځایه کړه) څلور اوازونه (ب-چ-ژ-ګ) ددري ژبې خاص غږونه دي چې پښتو او دري ژبې تر منځ په ګډه کارول کېږي او په عربي ژبې کې نشته.

همدارنګه د پښتو ژبې په مروجه الفبا کې لس نور غږونه هم شته چې دغه غږونه په مستعار ډول په عربي کلیمو کې استعمالېږي خو پښتو کلیمو کې دغه اوازونه نه راځي ، ځکه د غه لس اوازونه په عربي ژبه کې دخاصو عربي غږونو په نامه یادېږي.

دغه اوازونه په هغو کلیمو کې چې پښتوژبې ته له عربي ژبې څخه راغلي دي اوس په پښتو کې مستعملې دي .[1]

| | | |
|---|---|---|
| /ث / | /C/ | لکه ثابت -وارث-وراثث- باعث |
| /ذ/ | /ʃ/ | لکه ذلت -مذکور- ماخذ |

---

۱- زرغونه زېور ، پښتو ګرامر : کابل کابل پوهنتون ، ۱۳۶۰ ، ۹ مخ

| | | |
|---|---|---|
| /ح/ | /H/ | لکه حوض- حاضر -حضور |
| /ص/ | /s/ | لکه صبر -بصر- صبور |
| /ض/ | /z/ | لکه ضرر-مضروب - غامض |
| /ط/ | /t/ | لکه طالب- باطل -ناطق |
| /ظ/ | /z̄/ | لکه ظالم -مظلوم -ناظم |
| /ع/ | /ʕ/ | لکه عادت -طاعت- معلم |
| /ف/ | /F/ | لکه فرمان- کافر- نافع |
| /ق/ | /g/ | لکه قاموس- ناقوس- توافق |

## ۲-۳-۳- نیم واك اوازونه یا Semi vowel

هغو اوازونو ته ویل کېږي چې د خپلواکو او بېو اکو اوازونو تر منځ منځګړیتوب کوي یا په بله وینا هم د واول او هم د کانسوننت په ډول اداکېږي. که د څپې زړی ( هسته) وګرځي د خپلواك بڼه اخلي او که دڅپې زړی ونه ګرځي نو د بېواك په بڼه څرګندېږي ، دغه اوازونه په لاندې ډول دي:

و / w /لکه ور / War / ولور / walwar /

ی / y / لکه یور / yo۴/ یو /yaw/.

د / w / نیم واك د څپو په پیل او منځ راځي او په پای کې یوازې د غبرګ غږ په توګه راځي لکه لو = / law / پلو = / palaw / کنډو / kandaw/

/ی = y / نیم واك اواز دی دغه غږ هم د / w / په څېر د څپو په پیل اومنځ کې راځي او د کلیمو په پای کې یوازې د غبرګغږ په توګه ●اتلای شي . د کلیمو په پای لکه سړی /saray / کړکۍ / kərkəy / ډوډۍ/ dodəy /

## ۲-۳-۴ غبرګغږونه:

الف: واکه مرکب diphthongs د یفتانګونه :

ب : بې‌واك مرکب Clusters کلسترونه:

د یفتانګونه د خپلو اکو او ښواکو اوازونو له یو ځای کېدو څخه منځ ته راځي یا په بله وینا هر پښتو غبرګغږ دوه فونیمي عناصره لري ، لومړی عنصریې یو خپلواك فونیم او دویم عنصر یې یو نیم واك فونیم دی.

پښتو غبرګغږونه دوه دي : ۱- و = /w/- ی /ی y = / د / و = w /

غبرګغږونه په لاندې ډول دي:

/ew/ لکه په لېو / lew / کې

/ aw/ لکه په لو /law/ او کنډو / kandaw / کې

/ āw / لکه په پړاو /parāw/ او جړاو /jarāw/ کې

/ əw/ لکه په کټو / katəw / کې

د /ی = y / غبرګغږونه په لاندې ډول دي:

د /ay / ایوان / aywān / میره / mayrə / سړی / Saray / .

/ āy لکه آینه / āyna / ځایګنی / jaygenay / ځای / jay /

/ əy/ لکه نری narəy ډوډی dodəy کرکی / kərkəy / .

/ uy/ لکه خوی xuy بوی / buy / دوی / duy /

/ oy/ لکه زوی /zoy/ سوي (1) soy .

## ښواك مرکب /Clusters/ کلسترونه:

البته پاتې دې نه وي چې ځینې نور غبرګ غږونه شته چې د دوو ښواکو اوازونو یو ځای کېدو څخه منځ ته راځي . داسې غبرګغږونو ته ښواکه مرکب یا کلستر /Cluster/ وایي دا ډول غبرګغږونه هم د کلیمو په سراو هم د کلیمو په پای کې راځي ، لکه لمر /Lmar/ شپه /špa/ سپی /spay/ همدارنګه ژوند /Žwand/ شخوند .

/Šxwand/ پند / pand/.

(1) مجاور احمد زیار . پښتو پښویه . کابل پوهنتون . دلوړو زدکړو چاپخونه . ۱۳۶۲ – ۸۰ مخ.

## ۵-۳-۲-د موضوعاتو لنډيز او پوښتنې:

۱- فونولوژي د ژبپوهنې هغه برخه ده چې يوازې ارزښتناك غږونه ( فونيمونه) تر څېړنې لاندې نيسي.

۲- اواز ( واج-واك) دژبې ترټولو کوچنى غږيز عنصر دی چې پخپله کومه مانا نه لري بلکې په مانيزو کليمو کې ما نيز تو پير پېښوي د بېلگې په توگه /ك/ په پښتو کې يو اواز چې يو لغت لگر/کور/ له بل لغت /گور/ څخه توپير کړی دی لکه چې رحمن بابا وايي:

په سبب د ظالمانو حاکمانو – کوراو گور پېښور درې واړه يو دي.

۳- گرافيم /Graphem/ د فونيم ليکلې شوې بڼې ته وايي يا په بل عبارت هغه دليدو وړ انځور دی چې د يو اواز ښکارندويي کوي.

۴- پښتو ژبه له ۳۶ غږونو څخه جوړه شوې ده چې په لاندې ډول دي.
خپلواك . بېواك او نيم واك.

الف: خپلواك غږونه:هغه غږونوته وايي چې د تلفظ کولو په وخت کې صوتي غړي په تماس کې نه وي او د هوا په جريان کې بندښت نه پېښېږي.

ب: بېواك غږونه:هغو غږونو ته ويل کېږي چې د تلفظ کولو په وخت کې د هوا په جريان کې بندښت راځي او صوتي غړي په تماس کې وي.

ج: نيم واك غږونه Semi Vowel:هغو غږونو ته ويل کېږي چې د بېواکو او خپلواکو اوازونو تر منځ منځگړيتوب کوي يا په بل عبارت هم د واول او هم د کانسوننت په ډول ادا کېږي.

د: غبرگغږونه:چې د خپلواکو او بېواکو اوازونو له يو ځاى کېدو څخه منځ ته راځي يا په بله وينا هر پښتو غبرگغږ دوه فونيمي عناصر لري

یو یې خپلواك او دویم یې نیم واك غږ دی.

## پوښتنې :

۱ فونو لوژي تعریف کړئ؟
۲ فونیم څنګه راپېژندلی شئ؟
۳ ګرافیم څه ته وایي؟
۴ پښتو ژبه له څو غږونو څخه جوړه شوې ده؟
۵ پښتو خپلواك غږونه څو دي؟
۶ بېواك غږونه تعریف کړئ؟
۷ په پښتو کې نیم واك غږونه څو دي؟
۸ د کلیمې په سر او په پای کې نیم واك غږونه په مثالونو کې وښایاست؟
۹ غبرګغږونه تعریف کړئ؟

# دریم څپرکی

# پښتو مورفولوژي

صرف د ګرامر هغه برخه ده چې په هغه کې د یوې ژبې ټاکلي مورفیمونه د هغوی جوړښت ،ترکیب ګردان او د هغوې ډولونه تر څېړنې او بخث لاندې نیول کېږي.

## ۱-۳- مورفیم څه ته وایي ؟

مورفیم هغه کوچنی ژبنی مانیز واحد دی که تجزیه شي خپله معنی له لاسه ورکوي او د هغه له تجزیه کېدو څخه بې معنی اوازونه لاس ته راځي ، مورفیم یو نه تجزیه کېدونکی مانا لرونکی واحد دی.

## ۲-۳- د مورفیم جوړښت :

څرنګه چې فون /phone/ د فونالوژي یا فونیمکس اساسي واحد تشکیلوي همدا رنګه /Morph/ مورف د مورفالوژي اساسي واحد دی ، د مورفیم کلیمه د مورف یعنی د شکل او بنې په معنی او /eme/ یو روستاړی

( پسوند ) دی چې د متمایز واحد په معنی دی [1] . یعنی مورفیم هغه کوچنی ژبنی مانیز واحد دی که تجزیه شي خپله معنی له لاسه ورکوي او د هغه له تجزیه کېدو څخه بې مانا اوازونه لاس ته راځي نو په دې توګه مورفیم یو نه تجزیه کېدونکی لفظي مانا لرونکی واحد دی .

## ۳-۳- مورفیم او څپه :

څپه د هجا یا سېلاب په معنی ده کله که موږ د مورفیم څخه بحث کوو نو د څپې موضوع حتماً رامنځ ته کېږي ځکه څپه د مورفیم یو جز دی.

څپه هغه ژبنی واحددی چې یا یوه خپلواك وي او یاله یو خپلواك او یوه یا څو بېواکو څخه جوړ وي او په یو ځایي ډول له خولې څخه راوځي لکه د /آبا/ کلیمه چې دوه څپې لري چې لومړی /آ/ یو ه څپه ده چې یو خپلواك غږ دی او دویم /با/ بله څپه ده چې له یوه بېواك /ب/ او یوه خپلواك /آ/ څخه جوړه شوې ده او په ګډه سره دواړه یو مورفیم تشکیلوي.او که چېرې تجزیه شي بې مانا اوازونه لاس ته راځي . له بله پلوه خپلواك اواز د څپې په جوړښت کې اساسي رول لري په دې معنی چې پر ته له خپلواك اواز څخه هډو څپه تشکیلېدای نشي یعنی خپلواك اواز د څپې زړی یعنی هسته تشکیلوي . څپه په دوه ډوله ده:

وازه او تړلې څپه :

وازه څپه : هغې څپې ته وایي چې له یو خپلواك اواز څخه جوړه وي او یا په یو خپلواك اواز پای ته رسېدلې وي لکه ابا- ته ،زه ،بیا.

تړلې څپه : هغې څپې ته وایي چې په یوه بېواك اواز پای ته رسېدلې وي لکه :

مور - خور - پور - یور - غبرګ- خپل.

---

[1] محمد حسین یمین . دستور زبان دری کابل : کابل پوهنتون ۱۳۶۵ . ٦٦ مخ

## ۳-۴ مورفیم او کلیمه :

کلیمه یو رواني واحد دی [۱] چې غالباً بېل ویل کېږي او لیکل کېږي او لغوي معنی لري. کله تل خپلواك او مستقل مفاهیم لېږدوي . خو مورفیم یو لفظي واحد دی چې لغوي او ګرامري معنی لري .مورفیم هم کله بېل او کله دیوې کلیمې د جز په توګه راتلای شي مورفیم یوګرامري نه تجزیه کېدونکی واحد دی، همدارنګه هرې کلیمې ته مورفیم نشو ویلی او هر مورفیم ته کلیمه یوازې بسیطې کلیمې خپلواك مورفیمونه بلل کېدای شي . د بېلګې په توګه کتابچه یوه کلیمه ده چې له دوو مورفیمونو /کتاب/ او/چه/ څخه جوړه شوې ده . نو کتابچه یو معنی لرونکی واحد دی چې د تجزیې وړ دی یعنی / کتاب / یو مستقل مورفیم او /چه/ یو تصغیري روستاړی دی چې یو ناخپلواك مورفیم دی . نو په دې توګه کتابچه یوه کلیمه ده چې له دوو مورفیمونو څخه /کتاب/ یو خپلواك مورفیم او /چه/ یو نا خپلواك مورفیم دی جوړه شوې ده.

## ۳-۵ د موضوعاتو لنډیز او پوښتنې:

۱ مورفولوژي یا صرف د ګرامر هغه برخه ده چې په هغه کې د یوې ژبې تاکلي مورفیمونه د هغوی جوړښت ،ترکیب، بدلون او دهغوی ډولونه تر څېړنې او کتنې لاندې نیول کېږي.

۲ څرنګه چې غږ یا فون د فونالوژي یا فونیمکس اساسي واحد دی یا اساسي واحد تشکیلوي ،همدارنګه مورف د مورفالوژي اساسي واحد دی.

۳ کله که موږ د مورفیم څخه بحث کو و د څېپې موضوع حتماً رامنځ ته

---

(۱) منصور . اختیار مبعي شناسي . تهران : منوچهر ۱۳۴۸ . ۶۰ مخ.

کېږي. ځکه څپه د مورفیم یو جز دی. څپه هغه ژبنی واحد دی چې یا یو خپلواك وي اویاله یوه خپلواك او یوه یا څو بېواکو غږونو څخه جوړه وي او په یو ځایي ډول له خولې څخه راوځي لکه /ابا/ چې دوه څپې لري /ا/ او /با/ لومړۍ څپه یې یو واول او دویمه څپه یې له یوه کانسوننټ او یوه واول څخه جوړه ده. بې له خپلواك غږ څخه هېڅ څپه نه جوړېږي.

۴ کلمه لغوي معنی لري او تل مستقل مفاهیم لېږدوي خو مورفیم لفظي واحد دی چې لغوي او ګرامري معنی لري. مورفیم یو ګرامري نه تجزیه کېدونکی واحد دی.

## پوښتنې:

۱ مورفالوژي تعریف کړئ؟
۲ د مورفالوژۍ اساسي واحد څه شی دی؟
۳ څپه یا سېلاب څه ته وايي؟
۴ وازه او تړلې څپه په مثالونو کې وښیاست؟
۵ مورفیم تعریف کړئ؟
۶ مورفیم او کلیمه څه توپیرلري؟
۷ مورفیم او څپه څه توپېر لري؟
۸ لاندې متن په فونیمیکه الفبا ولیکی او څپې یې بېلې کړئ.

نبوي سیرت د ډېرو داسې ځانګړتیاوو او ممیزاتو لرونکی دی چې لوستنه یې د انسان دپاره روحي، عقلي او تاریخي ګټه رسوي او د ټولنیزې اصلاح غوښتونکي د سیرت د زده کړې پر ضرورت قانع کوي. تر څو خلکو ته اسلامي شریعت په داسې طریقه او اسلوب سره ورسوي چې همدغه سیرت یې د پریشانۍ او راز راز کړاوونو سره دمقابلې له پاره لوی مرستندوی وي او په همدې وسیله به اسلامي داعیان د خلکو زړونو ته لارمومي




# څلورم څپرکی

## د مورفیم ډولونه

څرنګه چې مخکې وویل شول، مورفیم د ژبې تر ټولو کوچنی مانیز عنصردی چې د څو اوازونو له یو ځای کېدو څخه جوړېږي او له تجزیه کېدو څخه يې بې مانا ساده اوازونه یا په بله وینا بې مانا عناصر لاس ته راځي .

مورفیم په دوو ډولو وېشل کېږي:

خپلواک ،غیرمقید یا ازاد مورفیمونه ، ناخپلواک ، مقید یا تړلي مورفیمونه.دادی په دې څپرکي کې نا خپلواک ، مقید مورفیمونه څېړل کېږي.

### ۱-۴- نا خپلواک ،مقید مورفیمونه: Bound Forms

دیوې ژبې په عبارت او وینا کې هغه وړې ټوټې او برخې چې په ځانګړي او مستقل ډول د استعمال وړ نه وي یعنې که په ځانګړي اوخپلواک ډول استعمال شي نو هیڅکله هم معنی نه ورکوي . ناخپلواک مورفیمونه بلل کېږي لکه د / کتابونه/ کلیمه چې له دوو مورفیمونو څخه جوړه شوې ده / کتاب/ یو خپلواک مورفیم او / ونه/ د جمعې روستاړی دی چې یو ناخپلواک مورفیم دی که چېرې د کتاب له کلیمې څخه لرې کړای شي په خپلواکه توګه کومه معنی نه رسوي . او هغه وخت معنی ښندي چې د کتاب د کلیمې سره راشي.

د مطلب د ښه څرګندتیا لپاره د مورفیمونو ډولونه په لاندې ډول وړاندې کیږي.

## د مورفیم ډولونه

| تړلي مورفیمونه | | |
|---|---|---|
| ساختماني نښې | ۱ | سربلونه او اوستربلونه |
| | ۲ | د ربط نښې |
| | ۳ | د عطف نښې |
| | ۴ | د غږونو (اصوات) نښې |
| تاړي (وندونه) | ۱ | صرفي مختاړي |
| | ۲ | کلیمه جوړوونکي مختاړي |
| | ۳ | صرفي روستاړي |
| | ۴ | کلمه جوړوونکي روستاړي |

| ازاد مورفیمونه | | |
|---|---|---|
| نومیزې ملي | ۱ | نوم |
| | ۲ | صفت |
| | ۳ | ضمیر |
| | ۴ | عدد |
| قیدونه | ۱ | دڅرنګوالي قید |
| | ۲ | د زمان قید |
| | ۳ | دمکان قید |
| | ۴ | د مقدار قید |
| | ۵ | د تاکید قید |
| فعلي نښې | ۱ | فعل او دهغه ریښه • |
| | ۲ | دفعل وګړي (اشخاص) |
| | ۳ | دفعل وجه |
| | ۴ | لازمي اومتعدي فعل |
| | ۵ | مثبت اومنفي فعل |
| | ۶ | د فعل زمان |

## ۱-۱-۴- سربلونه او اوستر بلونه:

دا هغه نه ګردانېدونکي مقيد مورفيمونه دي چې په خپلواکه توګه کومه معنی نه ښندي بلکې د خپلواکو غیرمقیدو مور فیمونو سره یو ځای یوه معنی اومفهوم رسوي.

**سربلونه (پېشینه ها) : Prepositions**

سربلونه هغه ادات دي چې تریو نوم د مخه راځي او په جمله کې د هغه حالت او دریځ څرګندوي لکه / په/ د : په کور کې/ له / : له ښونځي څخه ، / تر/ تر کوره پورې / په / تاپورې:

**اوستر بلونه(پسینه ها) Post positions**

په یوه جمله یا فقره کې تر نوم وروسته راځي .

دا دي په لاندې توګه د سر بلونو او اوستر بلونو استعمال په جمله کې ښودل کېږي.

| سربل | اوستربل | مثال |
|---|---|---|
| په | کې | زه په کوټه کې یم |
| په | سره | په زیار او زحمت سره بریَ حاصلېږي |
| په | پورې | په چا پورې نه خاندم |
| په | پسې | په تا پسې نه ځم |
| پر | باندې | زه پر څوکۍ باندې ناست یم |
| پر | سربېره | پر دې کار سربېره نور کارونه هم شته |
| د | لپاره | د خبرو لپاره وخت نلرم |
| د | غوندې | د مزدور غوندې یې وګټه |
| د | کره | د احمد کره نه ځم ( کورته) |
| تر | لاندې | تر مېز لاندې پروت دی |
| تر | پورې | تر ښونځي پورې ځم |

| | | |
|---|---|---|
| تر | وروسته | تر غرمې وروسته راځم |
| تر | څخه (٥) | تر ځوزه (څخه) ګل ښه دی |
| تر | ډباندې | تر کور ډباندې ووځه |
| تر | پرته | تر ځلمي پرته ښه سړی نشته |
| له | سره | له ځلمي سره ځم |
| له | څخه (٤) | له احمد څخه مې کتاب واخیست |
| له | وروسته | له غرمې وروسته کوړته ځم |
| له | راهیسې | له پرون راهیسې کار لرم |
| له | پرته | له احمد پرته محمود هم راغلی و |
| بې | څخه | بې اوبو څخه ژوند نشته. |
| و | ته | وتاته مې ووې |

## ۲-۱-۴- اداتِ یا Particles:

ادات د نه ګردانېدونکو مورفیمونو یوه مهمه برخه ده اوپه لاندې ډول دي:

## ۳-۱-۴- ارتباطي ادات Conjunctions:

دغه ادات د څومره والي ، څرنګوالي یا ورته والي له مخې دوه جملې سره نښلوي او دوه، دوه سره یو ځای کېږي چې له زیاترو سره/چې / هم ملګرې کېږي. او په ګډه د دوو توتو یا فقرو اړیکې سره ټینګوي لکه څومره او هومره په لاندې عبارت کې:

څومره ډېګ هرمره ټېپر، لکه څنګه چې، هسې ،که څه هم ، بیا هم ، څومره چې ، هماغومره چې ، چېرې ، هلته ، ( چېرې دې ښه هلته دې شپه ) داسې همداسې ، همداراز، هغسې، همدارنګه ، هماغسې ، څو ، مګر، همدومره ، په همدې ډول په همدېراز،

یادونه: پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار ارتباطي ادات چې پورته ذکر یې وشو د ازاد و مورفیمونو په ډله کې شمېري[1]

---

[1] مجاور احمد زیار : پښتو پښنو یه کابل پوهنتون . دلورو زده کړو چاپخونه ۱۳۶۲ ل- ۱۹۸۳ ع.

### ۴-۱-۴- تشبیهي ادات:

په عنعنوي ګرامرونو او ادبي فنونو کې د (حرف تشبه) په نامه یاد شوي دي تشبیهي ادات هغو اداتو ته ویل کېږي چې د دوویا زیاتو څیزنو او پدیدو ورته والی او مشابهت ښیي لکه ځوندې ، په څېر، په رنګ ، په شان، په دود ، په توګه، په ډول، په راز او داسې نور.

### ۵-۱-۴- د عطف ادات:

چې کلیمې او جملې سره یو ځای کوي لکه (او- که – یا – سره ) په دې بېلګه کې . باغ وای د ګلونوپکې ناست وای زه ا وته . (که او یا ) هم مانیز عطف ادات دي لکه (ښه که بد ) (ښه یا بد)

### ٦-۱-۴- د اضافت ادات:

هغو اداتوته ویل کېږي چې څېزونه لوپدیدې سره اړوند وي او ملکیت ښیي . پښتو یوازې یو اضافت توری لري چې / د/ دی . لکه:
د زرمینې قلم، د احمد کتاب ، دلیلې پېزوان، د شپانه رمه او داسې نور،

### ۲-۴- تاړي (وندونه): Affixes

هغه تړلي او مقید مورفیمونه دي چې د ازاد و مورفیمونو سره یوځای والي او پیوستون له کبله د هغه معنی او مفهوم څرګندېدای شي چې ددغه تاړي په یو ځای کېدو سره کلیمه نوی مفهوم او مانا پیدا کوي او یومشتق منځ ته راوړي په لاندې ډول دي

### ۱-۲-۴- مختاړی (پیشوند): Prefix

هغه تاړي ته ویل کېږي چې د کلیمې په سر پورې ښلي او دنورو تاړو غوندې له نوي شکل اومانا سره یو نوی مشتق رامنځ ته کوي په لاندې ډول دي

الف: دنفي او نهي په صورت: چې د دغو مختاړو په ښلولو سره منفي صفات مجرد فعل امر، نفي جوړېږي لکه:

مه (نهي) مه کښېنه . مه پاڅه ، مه ګوره ، مه کوه. مه خوره ، مه کښېنئ. نه (نفي ) نه ګوري، نه ويني ، نه پاڅېږي ، نه خوري، نه ځي.

ب: د مطلقيت مختاړی :

په پښتو ژبه کې / و = wə / د مطلقيت مختاړی دی کله چې د ځينو فعلونو په سر کې راشي مطلقه ماضي تري جوړېږي ، لکه ماو- خندل ، ما وليکل ، ماو- ژړل ، ماو – نخل. ماو – لمبل ، ما واغوست ، ما وتړه.

ج: کليمه جوړوونکي مختاړي:

چې د دغو مختاړو په نښلولو سره يوه نوې معنی او مشتق رامنځ ته کېږي.

بې: لکه بې فکره، بې عقله ، بې خونده ، بې لارې، بې ژبې ، بې غيرته.

نا: لکه نافکره ، ناجوړه ، نابلده ، ناکاره ، ناخوښه، ناکسه.

هم: ددغو مختاړو په نښلولو سره ذاتي صفات جوړېږي او يو رنګي افاده کوي. لکه هم خياله ، هم فکره ، هم غاړی.

( کم- بد- يو- نيم) د مختاړو په نښلولو سره صفات جوړېږي لکه کم فکره ، کم همته، بد کاره ، بدعمله ، يو وزری ، يولاسی، نيم کوره ، نيم کښه . [١]

ددغو مختاړو ( خوا- شا- سر- خر) له يو ځای کېدو څخه صفتونه نومونه لاسته راځي لکه خوابدی ، خواخوږی ، شاخوږی ، سرکښي، سر پاندي ، خرغوږ، خروله.

ددغو مختاړو ( پرې، کښې، پورې، را ، در، ور ، ننه، جار ، بيا ، تېر)د /وتل/ فعل پورې په نښلولوسره په نوي شکل او معنی فعلونه جوړېدلای شي لکه پرې + وتل، تېر+تلل ، جار+وتل. کښې+وتل. پورې+وتل ،بيا+موندل، را+تلل، در + تلل ، ور+ تلل .

## ۳-۲-۴- روستاړي Suffixes :

هغه تاړي يا وندونه دي چې د مربوط مورفيم يا کليمې په پای پورې

---

[1] صديق الله رښتين . پښتو ګرامر : کابل وزارت تعليم و تربيه . مطبعه معارف. ۱۳۷۰ . ۱۳۴ مخ

نښلول کېږي او يو نوی مشتق رامنځ ته کوي . داسې چې شکل او معنی يې له هغه بنسټيز مورفيم يا کليمې څخه توپېرولري لکه / نی / چې له کور څخه کورنۍ جوړوي.

اويه دوه ډوله دي:

## ۱- صرفي روستاړي:

الف: فاعلي روستاړي:د اوس مهال د فعل له ريښې سره:

په پښتو ژبه کې دغه روستاړي پنځه دي.

| | | |
|---|---|---|
| ۱ | ام / əm / | و /u/ |
| ۲ | ې /e/ | ئ /əy/ |
| ۳ | ي / i / | ي /i/ |

د تېر مهال لازمي فعل سره

د لومړي او دويم شخص له پاره کټ مټ همدغه ( ام-و-ې-ئ) روستاړي دي خو ددريم شخص په مورد کې په لاندې ډول دي:

/ə/ يا صفر دريم شخص مفرد مذکر احمد لاړ يا لاړه /ə/

/əl// له / دريم شخص مفرد مونث ملالۍ لاړله يا لاړه /a/

/əl/ /ال/ دريم شخص جمع مذکر احمد او محمود لاړل /əl/

/le/ / لې/ دريم شخص جمع مونث تورپيکۍ اوملالۍ لاړلې /le/

د متعدي فعل سره: په اوس مهال کې همدغه پنځه روستاړي ( ام- و – ې –ئ او ي) دي.

## ب : مفعولي روستاړي:

## د متعدي فعل سره په تېرمهال کې :

څرنګه چې متعدي فعل په تېر مهال کې د جملې له مفعول سره مطابقت ښيي نو که چېرې مفعول مفرد مذکر وي ، روستاړی، /ə/( زورکي) په بڼه او که مفعول مفرد مونث وي نو روستاړی د /a/ ( له) په بڼه څرګندېږي . همدارنګه که مفعول جمع مذکر وي د /əl/ په بڼه که مفعول جمع مونث وي،

روستاړي د /le/ (لې) په بڼه ظاهرېږي.

که چېري مفعول په تېر مهال کې لومړی ، دویم او دریم شخص وي نو روستاړي په لاندې ډول ظاهرېږي.

احمد زه ووهلم / ام    احمد موږ ووهلو /و/

احمد ته ووهلې / ې    احمد تاسې ووهلئ /ئ/

احمد دی ووهه / ə    احمد دوی (جمع مذکر) ووهلو /əl/

احمد دا ووهله / a    احمد دوی (جمع مونث) ووهلې /le/

نو په پورته ډول وینوچې د لومړی او دریم شخص (مفرد اوجمع له پاره) هماغه د:

ام /əm/    و /u/

ې /e/    ئ /əv/

روستاړي راغلي دي خو ددریم شخص له پاره د مفرد مذکر مفعول له پاره /ə/ د مفرد مونث مفعول له پاره /له / د جمع مذکر لپاره /ال/ اود جمع مونث له پاره د /لې/ په بڼه ظاهر شوي دي.

## ۲-کلیمه جوړوونکي روستاړي (اشتقاقي)

په پښتو ژبه کې اشتقاقي روستاړي ډېر زیات دي ،خو دلته د نمونې په توګه د یو څویادونه کېږي.

### الف: د نسبت روستاړي :

چې یو نوم ،قام ، ځای ،زمان، جنس او نوروته نسبت ورکوي اوپه لاندې ډول دي:

وال: لکه : کامه وال ، بانده وال ، خبروال ، پکتیاوال ، ښارنوال.

خېل: لکه سلیمان خېل ، اتمان خېل ، ایوب خېل ، بابکر خېل.

زی: لکه : سدوزی ، وتوزی ، محمدزی، اسحق زی ، اڅکزی.

نی: لکه : اوسنی ، پرونی ، نننی ، مازدیګرنی، خندنی

ین: لکه : وریښمین ، خاورین،لورین،وربشین ، پرتمین.
ییز: لکه : چره ییز ، ګوله ییز.

## ب: تصغیري روستاړي:

ګوټی : لکه کتاب ګوټی ، هلك ګوټی، غریب ګوټی
ټی : کوچنی ، کوچ نوټی.
ك /اك/ تورك ، ځویك ـ
ګی : عتګی ،تورګی.

## ج: د مکان او زمان روستاړي :لکه

ځی لکه : لوست ځی ، پوهنځی، ښوونځی.
غالی لکه : اور غالی ، پنډغالی ، لوبغالی.
تون لکه : مېږه تون ، وړکتون ، زېږنتون ، پوهنتون .

## د: د صوت روستاړي:

هار : لکه درزهار ، چغهار ، ټکهار
کی : لکه : پشکی :

## هـ: فعلي روستاړي :

چې د هغه په نښلولو سره فاعلي صفات جوړېږی لکه :
ګر: خټګر،بزګر، کرګر، زرګر.
ندوی:ساتندوی ، پوهندوی ، ګټندوی .
ګړی: ژرنده ګړی ـ منځګړی .
کښ: زیارکښ، سرکښ .
ونکی : وهونکی، تلوونکی .

## ۳-۴- د موضوعاتو لنډیز او پوښتنې:

۱-مورفیمونه په دوه ډوله دي ، خپلواك اوناخپلواك.
خپلواك مورفیمونه چې په وینا کې په ازاده او مستقله توګه معنی ښندي .
نا خپلواك مورفیمونه چې په خپلواکه توګه کومه معنی نلری تر څو په یوې

کليمې پورې ونه تړل شي لکه کتابونه چې له دوو مورفيمونو څخه جوړ دي ،کتاب يو خپلواك مورفيم او د / ونه / روستاړی ناخپلواك مورفيم دی.

۲- سربلونه او وسترېلونه: سربلونه چې تريونوم دمخه راځي او اوستربلونه چې ترنوم وروسته راځي لکه په لاندې مثال کې : احمد په کور کې دی. په پورته جمله کې /په/ يو سربل دی چې تر نوم د مخه راغلی دی او /کې / اوستربل دی .

۳-ادات : دنه گردانېدونکو مورفيمونو يوه غوزه برخه ده او لاندې ډولونه لري. ارتباطي تشبيهي ،عطف او اضافت.

۴-تاړي هغه مقيد مورفيمونه دي چې د ازادو مورفيمونو سره د يو ځای والي په صورت کې خپله معنی ښندي، په لاندې ډول دي:

**مختاړي** : چې د کليمې په سر پورې ښنبلي له نوي شکل او مانا سره يو نوی مشتق رامنځ ته کوي لکه مه کوه ، نه کوي ، نه ځي .

**روستاړي** : هغه تاړي يا وندونه دي چې د کليمې په پای پورې ښنبلي چې ځيني يې صرفي دي او ځينې يې اشتقاقي .

لکه وځم ، ځو په کليمو کې ( ام- و ) صرفي روستاړي دي . او د کامه وال پکتاوال ، او سليمانخېل ، سدوزی محمدزی په کليمو کې ( وال خېل زی ) اشتقاقي روستاړي دي.

## پوښتنې:

۱ مورفيم په څوډوله دی؟
۲ ناخپلواك (مقيد ) مورفيمونه کومو مورفيمونو ته وايي؟
۳ سربلونه او اوستربلونه تعريف کړئ او مثالونه يې وښياست.
۴ ارتباطي ادات ، تشيهي ،عطف اواضافت په مثالونو کې واضح کړئ.

۵ تاړي تعریف کړئ.
۶ دنفي اونهي مختاړي په مثال کې وښیاست.
۷ کلمه جوړوونکي مختاړي کوم دي؟
۸ روستاړي تعریف کړئ؟
۹ صرفي روستاړي دمثالونو سره وښیاست؟
۱۰ کلمه جوړوونکي روستاړي( اشتقاقي ) کوم دي؟
۱۱ د نسبت د روستاړي څو مثالونه ووایاست.
۱۲ د تصغیر روستاړي کوم دي؟
۱۳ دصوت روستاړي کوم دي؟

# پنځم څپرکی

## نا مقید مورفیمونه

صرف د مورفیمونو د ډولونو له مخې په دوو ځانګو وېشل کېږي ، یود نه ګردانېدونکې مورفیمونو ځانګه چې مخکې یې بحث تېر شو اوبله د ګردانېدونکو مورفیمو ځانګه چې په دوو لویو برخو وېشل کېږي .دنوم صرف او د فعل صرف.

۱-۵- نوم: هغه کلیمه ده چې یې د زماني له ارتباط څخه د راز راز ځېزونو اوپدیدو څرګندونه کوي لکه مړی ،تېږه ، لرګی ، ښایست ، روغ، زه ، ته ،دی ،یو ،دوه او داسې نور.

### ۲-۵- د نوم ګرداني اړخونه:

نوم په عمومي ډول د درو اړخونو له مخې ګردانېږي لکه جنس ، عدد او حالت خوضمیر سربېره پر دغو دوه حالتونو د شخص له پلوه هم ګردانېږي.

۱-۲-۵- جنس: د جنس څخه مطلب دادی چې نوم نارینه دی که ښځینه د مطلب دښه څرګندتیا له پاره دنارینه او ښځینه نوم نښې په لاندې توګه راوړل کېږي.

### د ښځینه نوم نښې:

الف: /آ - ā / په (آ) ختم شوي نومونه لکه امریکا ، اسیا ، لیبیا ، کاناډا ، اوتاوا ، والګا ، خندا ،ژړا ، نڅا ، بلا ، ملا . (دمیم په زورکي ).

پورته نومونه که چېرې د جملې په مبتداء کې واقع شي خبر د مونث په شکل تصریفوي.

دا امریکا ده .
دا کاناډا ده .
لیبیا له افغانستان څخه لویه ده .
امریکا له آسیا څخه پر مخ تللې ده .
ماته ژړا راغله .
ماته خندا راغله.
بلا راغله .
ملامې ماته شوه.

ب: a /~- ه / : ټول هغه نومونه چې د /a/ په خپلواکه‌غږ / واول/ پای ته رسېدلي وي لکه لښته /a/ پانه /a/ غرمه /a/ منه /a/ سترګه /a/ پزه /a/ زنه /a/ ګوته /a/ پښه /a/ چوغکه /a/ شونډه /a/ پونده /a/.

همدارنګه لمنه /a/ ستنه /a/ برستنه /a/ مېچنه /a/ څنګله /a/ میاشته /a/ لاره /a/ ورځه /a/ وریځه /a/ (*)،

ج: د ( ۍ = ∂y ) په غبرګغږ ختم شوي نومونه لکه کرکۍ، څپلۍ، رسۍ، ډوډۍ، شپېلۍ، هوسۍ ، شړۍ. لکه:

کړکۍ ماته شوه.
څپلۍ وشکېده.
رسۍ وشلېده.

---

*د پشتوژبې په ځینو عنعنوي ګرامرونو کې د ستنه ، برسته کلیمې د سماعي مونثاتو په نامه یاد شوې دي او د (ستن، برستن، میچن څنګل...) په شکل راوړل شوي دي، حال دا چې دغه نومونه په پای کې /a/ لري، او د جمع کولو په وخت کې د /ې/ روستاړی اخلي او کټ مټ د هغه نومونو په‌شان جمع کېږي چې په /a/ ختم شوي دي که چېرې د اریايي ژبو (اوستا) (زړه فارس) تاریخي سیر ته وګورو نو متحرك الاخره تلفظونه اوس اوس ساکن الاخره کېږي. لکه منه + من، دسته. دست، رسته... او داسې نور.

ډوډۍ پخه شوه.

هوسۍ وتښتېده.

شړۍ وچه شوه.

شپېلۍ وغږېده.

روټۍ وخوړل شوه.

څوکۍ ماته شوه.

خولۍ زړه شوه.

د: د ( e = ې ] په خپلواك غږ ختم شوي نومونه لکه / ادې ، ناوې/

ادې راغله .

ناوې واده شوه .

پاتې دې نه وي چې د /e = ې/ پـه خپلواك غږ نور ختـم شـوي نومونـه د جمعې شکل لري په دې معنی چې /e= ې/ د جمعې يو مورفيم دی او ټول هغه نومونه چې د /a/ په خپلواك غږ پای شوي د /ې/ رو ستاړي په راوړو سره جمع کېږي. لکه (لښته، لښتې ـ سترګه، سترګې، پڼه، پڼې).

ه : د /i = ي/ په خپلواك غږ ختم شوي نومونه لکه خوشحالي، دوستي ، خپلوي، بياتي.

خوشحالي ده چې زه او ته سره وينو.

زموږ او تاسو تر منځ دوستي ده .

د خپلوانو تر منځ خپلوي ټينګه شوه.

بيا تي ماته شوه.

پاتې دې نه وي چې /ي =i / د جمعې مورفيم هم دی په دې معنی ټول هغـه نومونه چې د /ay= ی/ په ديفتانګک ختم شوي وي د /ي/ په روستاړي سره جمع کېږي. لکه (سړی /ay/ سړي /i/ لرګي، لرګي پردی ay پردي /i/ غلمی ay – غلمي /i/ کابلی ay - کابلي /i/ ).

و: په لنډ واو ( و=O) ختم شوي نومونه لکه ځانګو، ورشو، پښتو، بيزو، ښارو،

ځانګو ماته شوه .
ورشو وچه شوه .
بيزو مړه شوه .
ښارو والوتله .
پښتو خرابه شوه .

## د نارينه نوم نښې،

الف: ټول هغه نومونه چې په ببواك غږ ختم شوي وي لكه كور ، كتاب قلم، مېز، ور، ديوال، لاس، غوږ، ورمېږ.

دا زما كور دى.
دا كتاب دى .
دا زما قلم دى .
دا دليكلو مېز دى.
ديوال رنګ شو .
لاس مې مات شو .
غوږ مې كوڼ شو .
ورمېږ مې مات شو.

ب: ټول هغه نومونه چې د /ى=ay/ په غږ ګغږ ختم شوي وي لكه سړى، پردى، زمرى، پسرلى، دوبى، منى، ژمى، منګى، لرګى.

سړى راغى .
زمرى مړ شو .
پسرلى دى .
وريسې دوبى دى .
د كابل منى سوړ دى .
منګى مات شو .

ج: د /و=u/ په خپلواك غږ ختم شوي نومونه لكه تالو، سالو، باړخو، زردالو، شفتالو، پتو، چاكو.

دليلى سالو سور دى .

زردالو پوخ دى .

شفتالو خوند ناك دى .

چاكو تېره دى .

پتو تود دى

د: په زوركى /ə/ ختم شوي نومونه لكه زړه، وراره، تره، نيكه، پسه، لېوه.

د يادوني وړ ده چې د /وياله /ə/ ، چاړه /ə/ او خوله /ə/ كليمې هم په زور كې ختم شوي دي او دا كليمې كه چېرې په مبتداء كې واقع شي خبر د مونث په شكل تصريفوي خو كه چېرې د دغو كليمو مورفالوژي ته كتنه وشي نو د جمع كولو په وخت كې د /ې=e/ په روستاړي جمع كېږي او كټ مټ هغه قاعده وربانديې تطبيقېږي چې د /a/ په روستاړي ختم شوي نومونه جمع كېږي.

وياله /ə/ ويالې .

خوله /ə/ خولې

چاړه /ə/ چړې (چاړې)

همدارنګه وګورئ د /a/ په واول ختم شوي نومونه هم په /e= ې/ جمع كېږي.

لښته /a/ لښتې

منه /a/ منې

پنه /a/ پنې

سترګه /a/ سترګې

پزه /a/ پزې

ه: د /aw= و، āy ، oy ، iw، ew/ په غبرګغږ ختم شوي نومونه هم كه چېرې په مبتداء كې واقع شي خبر د مذكر په شكل تصريفوي لكه لو /Law/ پلو /plaw/ كنډو Kandaw ځاى /J̆āy/ خداى (ج) /xudāy/ .ځوى Zoy

تريو /triw/ لېو /Lew/

د غنمو لو دی.

هغه زموږ د کور په سر کندو دی

دا دچاځای دی.

دا زما ځوی دی.

دا ناك تريو دی.

۲-۲-۵ - عدد: (عدد څخه مطلب دادی چې يو نوم مفرد دی او که جمع

د نارينه نوم د جمعې علامې:

د / آن / په روستاړي:

الف: زياتره هغه نومونه چې په بېواك غږباې شوي وي او ساكښ وي. خو ځينې بې سانومونه هم په / آن / جمع کېږي. لکه :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| هلك | هلکان |
| پړانګ | پړانګان |
| مچ | مچان |
| کب | کبان |
| آس | آسان (آسونه) |
| نوك | نوکان (نوکونه) |
| ګل | ګلان (ګلونه) |

ب: همدارنګه ځيني نومونه چې په خپلواکو ږغونو ختم شوي وي په / آن / جمع کېږي لکه :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| لېوه /ə/ | لېوان |
| ټټو | ټټوان |
| کارغه | کارغان |

مرغه        مرغان

ج: د ( ay= ای ) غبرګغږ ختم شوي نومونه:

دغه ډول نومونه ځينې په / آن / او ځينې د / ي / په روستاړي جمع کېږي
هغه نومونه چې د / ي / په روستاړي جمع کېږي:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| ستوری / ay / | ستوري / i / |
| غړی / ay / | غړي / i / |
| لوښی / ay / | لوښي / i / |
| ملګری / ay / | ملګري / i / |
| اورګاډی / ay / | اورګاډي / i / |
| مرغومی / ay / | مرغومي / i / |
| پسرلی / ay / | پسرلي / i / |

د: خوځينې له دغو نومونو څخه د /آن / او / ي/ دواړو روستاړو په راوړلو سره جمع کېږي لکه:

| مفرد | جمع(۱) | جمع(۲) |
|---|---|---|
| کابلی /ay/ | کابلي / i / | کابليان |
| ګونګی /ay/ | ګونګي / i / | ګونګيان |
| لمسی /ay/ | لمسي / i / | لمسيان |
| لېونی /ay/ | لېوني / i / | لېونيان |
| کندهاری /ay/ | کندهاري / i / | کندهاريان |
| زمری /ay/ | زمري / i / | زمريان |

د / ونه / په روستاړي:

الف: زياتره هغه نومونه چې په بېواک غږ ختم شوي اوساکښ نه وي . لکه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| مېز | مېزونه |
| کتاب | کتابونه |

| | |
|---|---|
| قلم | قلمونه |
| لاس | لاسونه |
| سر | سرونه |
| سیند | سیندونه |

ب: همدارنګه ځینې خپلواکپـاې نارینه نومونه او ځینې پـه غبرګغږ ختـم شوي نومونه په / ونه / جمع کېږي:

| د/ aw / | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| / | پلو | پلوونه |
| | کنډو | کنډونه |
| | منډو | منډوونه |

د / ə / په / زورکي :

| | |
|---|---|
| تره /ə/ | ترونه |
| وراره /ə/ | وریرونه |
| پسه /ə/ | پسونه |
| زړه /ə/ | زړونه |

د /ə/ زورکي په روستاړي:

الف: ځینې یو څپه ییز نومونه او صفتونه د /ə/ په روستاړي جمع کېږي:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| غل | غله /ə/ |
| مل | مله /ə/ |
| شین | شنه /ə/ |
| مفرد | جمع |
| سور | سره /ə/ |
| خر | خره /ə/ |
| اوم | اومه /ə/ |
| اوړد | اوږده /ə/ |

ب: زياتره هغه نومونه او صفتونه چې د کليمې د منځ خپلواك غږونه / و او ی / له منځه ځي او الف زياتېږي او د /ə/ په روستاړي جمع کېږي.

| | |
|---|---|
| پښتون | پښتانه /ə/ |
| شپون | شپانه /ə/ |
| روند | ړانده /ə/ |
| کوڼ | کاڼه /ə/ |
| موړ | ماړه /ə/ |
| زوړ | زاړه /ə/ |
| يوم | يامه /ə/ |
| شکوڼ | شکاڼه /ə/ |
| تريو | تراوه /ə/ |
| تريخ | تراخه /ə/ |
| پوخ | پاخه /ə/ |

## د ښځينه نوم د جمعې علامې او نښې:

الف: د / ې – e/ په روستاړي.

ټول هغه نومونه چې د /a/ په خپلواك غږ پای شوي وي : لکه :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| لښته /a/ | لښتې / e / |
| پڼه /a/ | پڼې / e / |
| غرمه /a/ | غرمې / e / |
| ونه /a/ | ونې / e / |
| تخته /a/ | تختې / e / |
| رمه /a/ | رمې / e / |
| کوټه /a/ | کوټې / e / |
| سترګه /a/ | سترګې / e / |
| زنه /a/ | زنې / e / |

همدارنگه

| | |
|---|---|
| ستنه /a/ | ستني / e / |
| مېچنه /a/ | مېچني / e / |
| برستنه /a/ | برستني / e / |
| میاشته /a/ | میاشتي / e / |

همدا رنگه د / ə / زوړکي ځینې ختم شوي نومونه.

| | |
|---|---|
| ویاله / ə / | ویالي / e / |
| چاړه / ə / | چړې / e / |
| خوله / ə / | خولې / e / |

ب: د / گاني او وې / په روستاړو.

هغه ښځینه نومونه جمع کوي چې په / - a آ / ختم شوي وي.

| مفرد | د/ وې | د / گانې / |
|---|---|---|
| ملا | ملاوې | ملاگانې |
| خندا | خنداوې | خنداگانې |
| ژړا | ژړاوې | ژړاگانې |
| نخا | نخاوې | نخاگانې |
| بلا | بلاوې | بلاگانې |
| غوا | غواوې | غواگانې |

ج: ځینې ساکښ نومونه چې د / əy/ ( ی ) په غبرگغږ ختم شوي وي.

| | |
|---|---|
| انۍ | انۍ گانې |
| ابۍ | ابۍ گانې |
| بوډۍ | بوډۍ گانې |

د: بل اندول یې هغه نومونه چې د / و = ه / په خپلواك غږ ختم شوي وي .

| مفرد | جمع |
|---|---|
| بیزو | بیزوگانې |
| پیشو | پیشوگانې |

| | |
|---|---|
| ورشو | ورشوګانې |
| راډيو | راډيوګانې |
| ښارو | ښاروګانې |
| زانګو | زانګوګانې |

ه : ځينې هغه نومونه چې د /əy = ی / په غبرګغږ ختم شوي وي د /ګانې/ په راوړو هم جمع کېږي او کله روستاړی يې صفر وي . يعنې مفرد او جمع يې په يو شکل راځي جملې د سياق څخه مفرد او جمع يې توپير کېږي.

| | |
|---|---|
| څوکۍ /əy/ | څوکۍ ګانې يا څوکۍ |
| کړکۍ /əy/ | کړکۍ ګانې يا کړکۍ |
| رسۍ /əy/ | رسۍ ګانې يا رسۍ |
| خولۍ /əy/ | خولۍ ګانې يا خولۍ |
| څپلۍ /əy/ | څپلۍ ګانې يا څپلۍ |
| ډوډۍ /əy/ | ډوډۍ ګانې يا ډوډۍ |

و: هغه مفرد مونث نومونه چې د / ي = i/ په خپلواک غږ پای شوي وي د/əy/په غبرګغږ جمع کېږي.

| مفرد | جمع |
|---|---|
| دوستي / i / | دوستۍ / əy / |
| خپلوي / i / | خپلوۍ / əy / |
| ناروغي / i / | ناروغۍ / əy / |
| خواري / i / | خوارۍ /əy / |
| خوشحالي / i / | خوشحالۍ /əy/ |

ز: د معنوي مونثاتو جمعې بې دو ده ( بې قاعدې) دي:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| مور | ميندې |
| خور | خويندې |
| نږور | نږندې |

| | |
|---|---|
| لور | لونړې |
| يور | يونړې |
| نجلۍ | نجونې |
| ترور | ترېندې |

ح: د نسبتي او شريکو صفاتو ښځينه جمع د نارينه جمعو څخه د /ې = e / روستاړي په زياتولو سره جمع کېږي:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| دوبيان | دوبيانې |
| موچيان | موچيانې |
| آشنايان | آشنايانې |
| خواران | خوارانې |
| کابليان | کابليانې |

۳-۲-۵- حالت: له حالت څخه مراد دادی چې يو نوم په جمله کې د خپل چاپېريال په لحاظ څه حالت لري . د بېلګې په توګه لاندې مثالونو ته توجه وکړئ.

۱ زرمينه راغله .

۲ زرمينې ډوډۍ پخه کړه .

۳ ما زرمينې ته ډوډۍ پخه کړه.

۴ ما زرمينه وتړله .

۵ د زرمينې ژوند خراب دی.

۶ ای زرمينې له خوبه پاڅېږه.

که چېرې پورتنيو مثالونو ته ځير شو وينو چې :

په لومړۍ او دويمه جمله کې / زرمينه / فاعلي حالت لري، خو په لومړۍ جمله کې / زرمينه/ په اصلي بڼه او په دويمه جمله کې په غير اصلي / زرمينې/ په بڼه راغلې ده.

په لومړۍ جمله کې دجملې فعل لازمي دی نو د لازمي فعل فاعل په اصلي حالت راځي په دويمه جمله کې د جملې فعل متعدي دی . په تېر مهال

کې د متعدي فعل فاعل په غیر اصلي بڼه استعمالېږي البته پاتې دې نه وي چې یوازې تغیر منونکي نومونه په غیر اصلي حالت راځي . په دریمه او څلورمه جمله کې وینو چې په دریمه جمله کې / زرمینه / د زرمینې په بڼه او ښتې ده او زرمینه غیر مستقیم مفولي حالت لري نو تغیر کوي.

په څلورمه جمله کې زرمینه اصلي بڼه لري نو په مستقیم مفعولي حالت کې تغیر منونکي نومونه تغیر نه کوي . همدارنګه په پنځم لمبر جمله کې /زرمینه/ د / زرمینې / په بڼه اوښتې ده چې مضاف الیه واقع شوې ده دا د دې معنی لري چې ټول تغیر منونکي نومونه که چېرې په یوه جمله کې دمضاف الیه په توګه استعمال شي په غیر اصلي حالت حالت راځي. په شپږم لمبر جمله کې / زرمینه / بیا هم د / زرمینې / په بڼه اوښتې ده چې ندایي حالت لري .

په پورتنیو څو مثالونو کې جوتېږي چې یو تغیر منونکی نوم په بېلا بېلو حالتونو کې بېلا بېل شکلونه اختیاروي . نو په دې توګه لومړی اوښتونکي او نه اوښتونکي نومونه دله بندي کېږي . او وروسته په مختلفو حالاتو کې څېړل کېږي.

په پښتو ژبه کې د یو نوم حالت د فعلي عملیې او اداتو له مخې څرګندېږي او د حالت نښې یې هماغه پایلې ( خاتمې) یا روستاړي دي چې په پای پورې یې نښلي .[1]

اوښتونکي نومونه:

۱ - ټول هغه نومونه چې د /ay/ په غبرګغږ ختم شوي وي:

| اصلی حالت | غیر اصلی حالت |
|---|---|
| سړی /ay/ | سړي /i/ |
| پردی /ay/ | پردي /i/ |
| څلمی /ay/ | څلمي /i/ |

---

[1] دوکتور مجاور احمد زیار پښتو پښویه کابل : د ژبو او ادبیاتو پوهنځی ، د لوړو زده کړو چاپخونه . ۱۳٦۲ : ۹۱ مخ.

| | |
|---|---|
| اغزی /ay/ | اغزي /i/ |
| وری /ay/ | وري /i/ |
| پسرلی /ay/ | پسرلي /i/ |
| دوبی /ay/ | دوبي /i/ |
| منی /ay/ | مني /i/ |
| ژمی /ay/ | ژمي /i/ |

۲ - ټول هغه نومونه او صفتونه چې د /a/ په خپلواک غږ پای شوي وي.

| اصلي حالت | غير اصلي حالت |
|---|---|
| تخته /a/ | تختې /e/ |
| مڼه /a/ | مڼې /e/ |
| پڼه /a/ | پڼې /e/ |

| اصلي حالت | غير اصلي حالت |
|---|---|
| لښته /a/ | لښتې /e/ |
| سترګه /a/ | سترګې /e/ |
| پزه /a/ | پزې /e/ |
| شونډه /a/ | شونډې /e/ |
| زنه /a/ | زنې /e/ |
| ونه /a/ | ونې /e/ |
| چوغکه /a/ | چوغکې /e/ |
| چرګه /a/ | چرګې /e/ |
| ګوته /a/ | ګوتې /e/ |
| کوټه /a/ | کوټې /e/ |
| لوټه /a/ | لوټې /e/ |
| لمنه /a/ | لمنې /e/ |
| بړستنه /a/ | بړستنې /e/ |

| | |
|---|---|
| مېچنه /a/ | مېچنې /e/ |
| میاشته /a/ | میاشتې /e/ |
| ورځه /a/ | ورځې /e/ |

هغه درې نومونه چې د تلفظ کولو په وخت کې وروستی غږیې د زورکي /ə/ په بڼه تلفظ کېږي.

| | |
|---|---|
| ویاله /ə/ | ویالې /e/ |
| چاړه /ə/ | چړې /e/ |
| خوله /ə/ | خولې /e/ |

۱ زیاتره هغه نومونه او صفتونه چې د کلیمې د منځ /و/ لوېږي او /a/ زیاتېږي اود کلیمې په پای کې د زورکي /ə/ په زیاتولو سره غیراصلي حالت ته اوړي.

| اصلي حالت | غیر اصلي حالت |
|---|---|
| پښتون | پښتانه /ə/ |
| شپون | شپانه /ə/ |
| ړوند | ړانده /ə/ |
| کوڼ | کاڼه /ə/ |
| زوړ | زاړه /ə/ |
| موړ | ماړه /ə/ |
| یوم | یامه /ə/ |
| پتلون | پتلانه /ə/ |
| پرتوګ | پرتاګه /ə/ |
| زنګون | زنګانه /ə/ |

۲ ځینې یو څپه ییزنومونه او صفتونه.

| اصلي حالت | غیر اصلي حالت |
|---|---|
| سور | سره /ə/ |
| شین | شنه /ə/ |

| | |
|---|---|
| پوخ | پاخه /ə/ |
| اوم | اومه /ə/ |
| اوږد | اوږده /ə/ |
| غل | غله /ə/ |
| مل | مله /ə/ |
| خر | خره /ə/ |
| مړ | مړه /ə/ |

۵. شخصي ضماير.

| اصلي حالت | غيراصلي حالت |
|---|---|
| ۱- زه | ما |
| ۲- ته | تا |
| ۳- دی | ده /ə/ |
| دا | دې |

۶: استفهامي ضماير:

| | |
|---|---|
| څوك | چا |
| كومه | كومې |

۷: اشاري ضماير:

| | اصلي حالت | غير اصلي حالت | |
|---|---|---|---|
| نږدې | دغه /a/ | دغه /ə/ | دغې /e/ |
| لېرې | هغه /a/ | هغه /ə/ | هغې /e/ |
| لالېرې | هوغه /a/ | هوغه /ə/ | هغوې /e/ |

## نه اوښتونكي نومونه:

په پښتو ژبه كې ځيني نومونه هم شته چې په مفرده بڼه كې په هيڅ حالت كې تغير نه مومي او په لاندې ډول دي.

۱ په / الف/ ختم شوي نومونه لكه كاكا ، ماما ، دادا ، كنشكا ، سبا.

۲ په / o - i ,ū / ختم شوي نومونه لكه بيزو ، ورشو ، پښتو ، تالو ،

باړخو ، سالو.

۳ د / əy- /ی / په غبرګغږ ختم شوي نوmonه لکه کړکۍ ، رسۍ ، څپلۍ ، نجلۍ ، خولۍ .

۴ ځینې هغه نومونه چې په /a/ ختم شوي دي او دشریکو صفاتو په ډله کې راځي هم نارینه راځي او هم ښځینه .لکه ښایسته ، پیاده ، ساده، ډاډه ، مېلمه ، کوربه ، بوده،

**۱-۳-۲-۵ فاعلي حالت**: چې یو نوم په جمله کې فاعل واقع شي، کار او عمل ترې صادر شي لکه احمد درس لولي ، محمود کالي پرېمینځي ، زرمینه ډوډۍ پخوي ، په تېرو جملوکې ( احمد محمود زرمینه ) فاعلي حالت لري.

مخکې مو د اوښتونکو او نه اوښتونکو ډله بندي وکړه خو دا مو ونه ویل چې دغه اوښتونکي نومونه په کوم حالت کې اوړي یعنې تغیر مومي .ځکه ددرې ژبې یا نورو ژبو ویونکو له پاره چې په خپله مورنۍ ژبه کې د غسې تغیرات نه لري نو د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې له ستونزو سره مخامخ کېږي نو لازمه ده چې دغه ټول تغیرات او اوښتنې چې ډله بندي شوي په حالتونو کې وځېړل شي.

ټول اوښتونکي نومونه که چېرې په یوه جمله کې د فاعل په توګه راشي هغه وخت تغیر کوي چې د جملې فعل ( مسند ) متعدي وي او فعل په تېر مهال کې واقع شوی وي په لاندې بېلګو کې دوه دوه مثالونه له هرې کټګورۍ څخه د نمونې په توګه راوړل کېږي او محترم استادان کولی شي د تدریس په وخت کې ډېر مثالونه ورکړي.

الف: د /ay/ په غبرګغږ ختم شوي نومونه :

| اوسمهال | تېرمهال |
|---|---|
| زلمی /ay/ ډوډۍ خوري. | زلمي /i/ ډوډۍ وخوړه /له/ . |
| سړی /ay/ کتاب لولي . | سړي /i/ کتاب ولوست . |

ب: د /a/ په واول ختم شوي نومونه:

زرمینه /a/ ډوډۍ پخوي — زرمینې /e/ ډوډۍ پخه کړه

ښځه /a/ د کور کارکوي — ښځې /e/ د کور کاروکړ.

ج: هغه نومونه اوصفتونه چې د کلمې د منځ /و/ لوېږي او الف زیاتېږي او په پای /ə/.

پښتون درس لولي — پښتانه /ə/ درس لوست

شپون رمه پیایي — شپانه /ə/ رمه وپووله

د: ځینې یو څپه ییز نومونه او صفتونه:

اوس مهال — تېر مهال

غل غلا کوي — غله /ə/ غلا وکړه

مل د غله ملتیا کوي — مله /ə/ دغله ملتیا وکړه

ه: شخصي ضمایر:

۱- زه ذرس لولم — ما درس ولوست

۲- ته درس لولې — تا درس ولوست

۳- دی درس لولي — ده /ə/ درس ولوست

۴- دادرس لولي — دې /e/ درس ولوست

و: استفهامي ضمایر:

څوك كار كوي؟ — چا كار وكړ؟

کومه ښځه کالي ګنډي؟ — کومې ښځې کالي ګنډل؟

ز: اشاري ضمایر:

نږدې: دغه /ə/ هلك كار كوي — دغه /ə/ هلك كار وكړ

دغې /e/ نجلۍ كار وكړ

لر (لرې) هغه /a/ هلك كار كوي — دغه /ə/ هلك كار وكړ

هغې /e/ نجلۍ كار وكړ

لالر: هوغه /a/ هلك كار كوي — هوغه /ə/ هلك كار وكړ

هوغې /e/ نجلۍ كار وكړ

په پورتنیو بېلګو کې ګورو چې اوښتونکي نومونه، صفتو نه او ضمایر د

متعدي ماضي په فاعلي حالت کې په غير اصلي بڼه راځي. البته پاتې دې نه وي چې په حال زمانه کې (د جملې د فاعل په توګه) ټول اوښتونکي نومونه په اصلي بڼه استعمالېږي. خو نه اوښتونکي نومونه که چېرې د جملې فاعل واقع شي په اوس مهال او تېر مهال کې په اصلي بڼه راځي.

## ۵-۲-۳-۲- بې واسطه مفولي حالت: لاندې مثالونو ته پاملرنه وکړئ.

| اوسمهال | تېر مهال |
|---|---|
| احمد ما ته ډوډۍ پخوي | احمد ماته ډوډۍ پخه کړه |
| پلوشه زرمينې ته کميس ګنډي | پلوشې زرمينې ته کميس وګنډه |
| زمرك زرڅانګې ته کتاب لولي | |
| زمرك زرڅانګې ته کتاب ولوست | |
| بريالی ځلمي ته کتابچه ورکوي | |
| بريالي /ا/ زلمي /ا/ ته کتابچه ورکړه | |
| شپون تاته رمه پيايي | شپانه /ه/ تا ته رمه وپووله |

په پورتنيو مثالونو کې (احمد ، پلوشه ، زمرك ، بريالی ، شپون) د جملې فاعل دي اما (زرمينې ، زرڅانګې ،ځلمي ، تا ) دجملې با الواسطه مفعول دي

همدارنګه (ډوډۍ ،کميس، کتاب ، کتابچه ، رمه ( د جملې بې واسطه مفعلول دي.

يا دا چې نومورې نومونه بې واسطه مفعولي حالت لري . او فعل په تېر مهال کې د همدغه بې واسطه مفعول سره مطابقت ښودلی يا دا چې د هغه له پاره تصريف شوی دی. له بله پلوه ويلی شو چې ټول او ښتونکي نومونه که چېرې د جملې بالواسطه مفعول شي نو په اوس مهال او تېر مهال کې په غير اصلي بڼه استعمالېږي.

## ۵-۲-۳-۳- بالواسطه مغعولي حالت:

په تېر مثالونو کې ( ما ، زرمينې، زرڅانګې ، ځلمي ، تا ) بالواسطه

مفعولي حالت لري ددې پورتنيو مثالونو څخه دا نتيجه اخستلای شو ټول او- ښتونکي نومونه که چېرې په اوس مهال او تېر مهال کې د بالواسطه مفعول په توګه واقع شي په غير اصلي بڼه استعمالېږي.

د موضوع د ښه وضاحت له پاره لاندې مثالونو ته توجه وکړئ.

| اوسمهال | تېرمهال |
|---|---|
| زه تا ته ډوډۍ پخوم | ما تا ته ډوډۍ پخه کړه |
| زرمينه پلوشې ته کتاب لولي | زرمينې پلوشې ته کتاب ولوست |
| شپون ماته رمه پيايي | شپانه ماته رمه وپووله |
| بريالی ده ته کتاب ورکوي | بريالي ده ته کتاب ورکړ |
| غل ماته غلا کوي | غله /ə/ماته غلا وکړه |
| زه کانه /a/ته درس ورکوم | ما کانه /ə/ ته درس ورکړ |

په پورتنيو بېلګو کې (تا - پلوشې - ما - ده - کانه) نومونه بالواسطه مفعولي حالت لري ، په اوسمهال او تېر مهال کې په غير اصلي بڼه اوښتي دي .

نو له پورتنيو توضيحاتو څخه دا نتيجه اخستلای شو چې اوښتونکي نومونه که چېرې په بالواسطه مفعولي حالت کې واقع شي په غير اصلي بڼه استعمالېږي . همدارنګه که چېرې دغه تغير منونکي نومونه د بې واسطه مفعول په توګه واقع شي نو په اصلي بڼه استعمالېږي. لکه:

| اوسمهال | تېر مهال |
|---|---|
| احمد زرمينه وهي | احمد زرمينه ووهله /a/ |
| زمرک بريالی وهي | زمرک بريالي وواهه /ə/ |
| تور خر وهي | تور خر وواهه /ə/ |
| اڅک شپون وهي | اڅک شپون وواهه /ə/ |
| احمد دی وهي | احمد دی وواهه /ə/ |

په پورتينو مثالونو کې (زرمينه، بريالی، خر، شپون ، دی) بې واسطه مفعولي حالت لري او په اصلي حالت راغلي دي .

يادونه: د لومړي اودويم شخص مفرد ضماير (زه - ته) په اوسمهال کې د

بې واسطه مفعول په توګه په غیر اصلي بڼه ( ما - تا ) استعمالېږي. لکه :

| تېرمهال | اوسمهال |
|---|---|
| احمد زه وهلم | احمد ما وهي |
| احمد ته وهلې | احمد تا وهي |
| احمد زه پېژندلم | احمد ما پېژني |
| احمد ته پېژندلې | احمد تا پېژني |

په پورتنیو مثالونو کې (زه ، ته ) ضمایر په اوسمهال کې د مستقیم مفعول په توګه په غیر اصلي بڼه استعمال شوي دي خو وینو چې په تېر مهال د مستقیم مفعول په توګه اصلي بڼه راغلي دي نور ټول ضمایر او اوښتونکي نومونه که چېرې په جمله کې د مستقیم مفعول په توګه واقع شي په اصلي بڼه استعمالېږي. لکه :

احمد دی وهي
احمد دا وهي
احمد شپون وهي
احمد زرمینه وهي
احمد زلمی وهي
احمد غل وهي

## ۵-۲-۳-۴ اضافي حالت:

که چېرې یو نوم په جمله کې مضاف الیه واقع شي او یا دا چې یو څه ورپورې اړه ولري دغه نوم مضاف الیه ګڼل کېږي او اضافي حالت لري. په یوه اضافي ترکیب کې لومړی / د/ د اضافت توری ورپسې مضاف الیه او وروستی نوم مضاف دی . د مطلب دښه څرګندتیا له پاره لاندې بېلګو ته توجه وکړئ.

د زرمینې قلم تور دی.
د ښځې پېزوان ښکلی دی .
د ما قلم تور دی.

د تا کمیس تور دی .

دده کتاب له ماسره دی .

ددې کتابچه له احمد سره ده .

دشپانه رمه لېوانو تالاکړه .

د ړانده امسا احمد واخیسته .

د کاڼه غوړونه ما ورپرې کړل .

په پورتنیو مثالونو کې ( زرمینه ، ښځه ، ما ، تا ، ده ، شپانه، ړانده ، کاڼه ) مضاف الیه واقع شوي دي چې اضافي حالت لري او یو څه ورپورې اړه لري، له بله پلوه وینو چې ټول اوښتونکي نومونه چې مخکې ډله بندي شول که چېرې په یوه اضافي ترکیب کې د مضاف الیه په توګه واقع شي په غیر اصلي بڼه استعمالېږي که څه دغه ترکیب توصیفي وي او که ملکي یا تشبیهي .

| | |
|---|---|
| د یا مهٔ /ə/ | لاستی |
| د پرتاګه /ə/ | پایڅه |
| د زنګانه /ə/ | سر |
| د پتلانه /ə/ | پایڅه |
| د پښتانه /ə/ | ژوند |
| د ځلمي /i/ | ځواني |
| دغله /ə/ | غلا |
| دمله /ə/ | ملتیا |
| د پلوشې /e/ | ښکلا |

## ۵-۲-۳-۵- ندایي حالت:

که چېرې یو نوم ته بلنه یا غږ شوی وي . بلننوم یا منادي بلل کېږي . او حالت یې ندایي حالت وایي . په ندایي حالت کې د نورو حالتونو پر خلاف ټول هغه نومونه چې په کانسوننت ( بېواک ) غږ ختم شوي وي په ندایي حالت کې د دغونومونو په پای کې /a/ زیاتېږي. لکه :

ای غله /a/ ! غلامه کوه .
ای ځوانه /a/ ! دا کارمه کوه.
ای هلکه /a/ ! دلته راشه .
ای احمده /a/ ! مه ځوربېږې.
ای استاده /a/ ! ستا په پوهې قسم دی.
ای هېواده /a/ ! ستا په لوړو غرومې قسم دی.

همدارنګه ټول هغه نومونه چې په غبرګغږ ختم شوي وي په ندايي حالت کې د نوم په پای کې /a/ زياتېږي.

ای سړیه /a/ !
ای زمریه /a/ !
ای پسرلیه /a/ !
ای پردیه /a/ !
ای شپونکیه /a/ !

هغه نومونه چې د /a/ په خپلواك غږ ختم شوي وي په ندايي حالت کې د نوم په پای کې /ې/ زياتېږي.لکه :

ای ښځې! د کور کار وکړه .
ای پلوشې! کمیس مې وګنډه .
ای چرګې ! بې ځایه آذانونه مه کوه.
ای زرمينې ! خپل درسونه ولوله .

همدارنګه ټول معنوي مونثات په ندايي حالت کې د نوم په پای کې / ې - e/ زياتېږي. لکه :

ای مورې ! ستاله کرېدلي ژوند څخه ځارشم.
ای لورې ! د خپل وطن پت او عزت وساته.
ای خورې ! دا وطن ستا مېړانې ته ضرورت لري.
ای ورېندارې ! خپل زامن ښه وروزه.
ای ترېندې ! خپل پت او عزت ته پام کوه.

پاتې دي نه وي چې نور نه اوښتونکي نومونه څرنګه چې په نورو حالتونو کې تغير نه کوي په ندايي حالت کې هم اوړون نه مومي ، لکه :
اى ليلى له خوبه پاڅه . اى ملا آزان وکړه ، اى کاکا ستا مينې ته ضرورت لرم :
اې ماما زما ښې هيلې ومنه . اې ځانګو ستا په غېږ کې د هېواد ماشوم روزل کېږي.

## ۵-۳ - د نوم څلورګونې ډلې:

په پښتو ژبه کې نومېزې ډلې په څلورو برخو وېشل کېږي . نوم ، صفت ، ضمير او عدد.

**۵-۴- د نوم ډولونه:** چې ژبپوهان يې اسم بولي يو داسې نوم دى چې د يو ځاى ، شي يا پديدې نومونه او څرګندونه کوي او دا وروسته ډولونه لري.

**۵-۴-۱- ذات اسم :** چې په يو حس کېدونکي څيز اړه لري يا په بل عبارت داسې يو څيز نوموي چې زموږ په حواسو حس کېداى شي لکه لرګى ، ډبره ، ونه ، هوا ،لښته، اوبه.

**۵-۴-۲- د معنى اسم:** هغه اسم ته وايي چې په يو غير محسوس څيز پورې اړه لري او جسماً په بهر کې وجود نلري لکه بدي ، ښه والى ، پوهه ، فکر ، ننګ، غيرت ، وېره ، غم ، اندېښنه ، دروناوى، سپکاوى.

**۵-۴-۳- خاص اسم :** چې يو خاص څيز، پديده ، شخص يا ځاى نوموي لکه : خوازك، زرمينه، پکتيا ، غزني، هند ، افغانستان ، کندهار، ننګرهار.

**۵-۴-۴- عام اسم:** داسې څيز يا پديده نوموي چې ځانګړى اوخاص نه وي بلکې ډولونه او څېلونه ولري لکه : هېواد ، ښاروي، ولس، ونه، هلك ، نجلى.

**۵-۴-۵- جنس اسم :** چې په يوه نه شمېرېدونکي څيز اړه لري لکه او به

غوړي ، تېل ، غنم.

**۵-۴-۶- جمع اسم** : چې یوه ډله او جمعیت نوموي لکه ټولګی ، رمه ، ټبر ، لښکر.

**۵-۴-۷- صوت اسم** : چې طبیعي یا مضوعي آوازونو انګازه نوموي لکه: د رزهار ، ګړپهار ، ترپهار.

## ۵-۵- صفت او د هغه ډولونه :

صفت چې په مستقله توګه د یو څه نوم نه وي خو د یو شي ځرنګوالی ښیي لکه روغ ، غښتلی ، کمزوری ، ښایسته ، تور ، سپین ، سور ، خړ.

په پښتو ژبه کې صفت د لوړتیا دپوړونو یا د لږوالي ، ډېروالي مستوالي یا تېدوالي بېلابېلې ښکاره درې ګونې درجې نلري لکه په دری ژبه کې : ( به ، بهتر ، بهترین ، بزرګ ، بزرګتر ، بزرګترین ) له دې کبله په پښتو ژبه کې یو صفت دا داتو په ملتیا خپله درجه او طبقه ښکاره کوي لکه : ( ښه ، ډېر ښه ، خورا ښه ، ) یا ( سپین ، ډېر سپین ، خورا سپین ).

**۵-۵-۱- عادي صفت** : چې د یو شي یا شخص ځرنګوالی په مطلق او کلي ډول بیانوي پرته له هغه چې په مقایسوي شکل وي یا د هغه درجه او اندازه وښیي لکه ښه سړی ، بد هلك ، توره تخته.

**۵-۵-۲- مقایسي ( پرتلیز ) صفت** : الف: د / ډېر / اداتو په ملتیا:

لکه دا خولی تر هغې خولی ډېره ښکلې ده یا احمد تر ما ډېر ذکي دی.

ب: مقایسي ( پرتلیز ) صفت د ( خورا یا لا ) اداتو په ملتیا :لکه :

دا خولی تر هغې خولی خورا ښکلې ده . یا زما ورور تر ما ذکي دی .

## ۵-۷- د صفت او موصوف ګرداني مطابقت:

په پښتو ژبه کې صفت خپل موصوف سره د جنس عدد او حالت له پلوه ګردانېږي صفت د خپل موصوف سره د ګرداني اړخونو له کبله په عمومي توګه په درې کټګوریو وېشل کېږي.

الف: هغه ډله صفات چې خپل موصوف سره د جنس مذکر د عدد لـه پلوه بشپړ سمون نه لري ، خو د جنس مونث موصوف سره بشپړ سمون ښيي.

| مذکر | | مونث | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| سپین قلم | سپین قلمونه | سپینه کتابچه | سپینې /e/ کتابچې |
| تور قلم | تور قلمونه | توره /a/ تخته | تورې /e/ تختې |
| خړ آس | خړ آسونه | خړه /a/ اسپه | خړې /e/ اسپې |
| ژېړ کمیس | ژېړ کمیسونه | ژېړه /a/ کرتۍ | ژېړې /e/ کرتۍ |
| بد هلك | بد هلکان | بده /a/ نجلۍ | بدې /e/ نجونې |
| ښه /ə/ هلك | ښه /ə/ هلکان | ښه /a/ ښځه | ښې /e/ ښځې |

ب: هغه ډ له صفات چې د جنس مذکر او جنس مونث د عدد له پلوه خپل موصوف سره بشپړ سمون ښيي او په لاندې ډول دي.

| مذکر | | مونث | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| سورآس | سره /a/ آسونه | سره /a/ لمنه | سرې /e/ لمنې |
| شین چمن | شنه /a/ کمیسونه | شنه /a/ لمنه | شنې /e/ لمنې |
| اوږد کمیس | اوږده /a/ کمیسونه | اوږده /a/ لمنه | اوږدې /e/ لمنې |
| پوخ ناك | پاخه /ə/ ناکونه | پخه /ə/ منه | پخې /e/ منې |
| اوم ناك | اومه /ə/ ناکونه | اومه /ə/ منه | اومې /e/ منې |
| تریخ انار | ترخه /ə/ انارونه | ترخه /ə/ منه | ترخې /e/ منې |
| خوږ انار | خواږه /ə/ انارونه | خوږه /ə/ منه | خوږې /e/ منې |

ج: ځینې شریك صفات دي چې د خپل موصوف سره د جنس او عدد له پلوه سمون نه ښيي .

| مذکر | | مونث | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| ساده /a/ هلك | ساده /a/ هلکان | ساده /a/ نجلۍ | ساده /a/ نجونې |
| پیاده /a/ هلك | پیاده /a/ هلکان | پیاده /a/ نجلۍ | پیاده /a/ نجونې |

لاهوهلك　　لاهو هلكان　　لاهو نجلی　　لاهو نجونې
اشنا هلك　　اشنا هلكان　　اشنا نجلی　　اشنانجونې

**۵-۷ - عدد اسم** : عدد هغه كليمه ده چې په خپلواك ډول څه نه نوموي بلكې ديو څيز په نوم پورې اړه لري . خو د ستاينوم غوندې څرنګوالی نه ښيي بلكې تعداد تدرج او پوړوالی ښيي لكه يوه ، دوه ، درې، يا لومړی ، دويم ، دريم .

شمېر نوم يا عدد لاندې ډولونه لري.

١ اصلي عدد لكه يو ، دوه ، درې، څلور ، پنځه ، شپږ او نور.
٢ وصفي يا رتبي عددلكه لومړی ، دويم ، دريم ، څلورم ، پنځم او شپږم ،
٣ كسري عدد. چې داړوند څيز نوم ماتوالی او برخه والی ښيي لكه : يو پر دوه دوه پر څلور ، درې پر پنځه ، پنځه پر شپږ.
۴ انقسامي عدد : چې مربوط څيز نوم ويشنه او جوړه جوړه كونه څرګندوي لكه يو يو ، دوه ، دوه ، درې ، درې ، څلور ، څلور ، او داسې نور.

**۵-۸-د عدد اومعدود ګرداني سمون.**

په پښتو ژبه كې عدد تر معدود د مخه راځي او لړو ډېرګردانېږي . په پښتو ژبه كې ( يو او دوه) د جنس له پلوه د خپل معدود سره سمون ښيي . لكه :

يو كتاب　　دوه كتابونه
يوه /a/ كتابچه　　دوې /e/ كتابچې

خو نور اصلي اعداد د خپل معدود سره سمون نه ښيي . لكه :

درې قلمونه　　درې كتابچې
څلور قلمونه　　څلور.كتابچې

پاتې دې نه وي چې د حالت له پلوه هم عدد خپل معدود سره ګردانېږي .

مذكر　　مونث
ديوه /ə/ غله /ə/　　يوه /a/ غله /a/
ديوه /ə/ خره /ə/　　ديوې /e/ غلې /e/

دوه غله /ə/ دوو غلو — دوه غلې /e/ د دوغلو

دوه غله /ə/ ددو غلو

درې غله /ə/ د ذروغلو — درې غلې /e/ددرو غلو

څلور غله /ə/ دڅلوروغلو — څلور غلې /e/ د څلورو غلو

پنځه غله /ə/ د پنځوغلو

پنځه مله /ə/ دپنځو ملو — شپږ ملې /e/ د شپږو ملو

## ۵-۹- ضمیر pronoun:

ضمیر هغه کلمه ده چې د یو نوم نمایندګي کوي یا د نوم پر ځای استعمالېږي. چې پخوا په کلام کې د هغه ذکر راغلی وي. د ضمیر دنده او وظیفه په خبرو کې د تکرار مخنیوی دی. ځکه تکرار د کلام د ضعف سبب ګرځي.

ضمیر د نورو نومونو پر خلاف د جنس، عدد او حالت سر بېره د شخص له پلوه هم اوړون مومي.

## ۵-۱۰- د ضمیر ډولونه:
ضمیر د شکل او چار له مخې په لاندې ډولو وېشل کېږي.

### ۵-۱۰-۱- شخصي ضمایر:
دغه ضمایر پردوه ډولو وېشل کېږي.

الف: عنبتلي ( قوي ) منفصل ضمیرونه : Strong pronoun

هغو ضمیرونو ته ویل کېږي چې په یوازې ( خپلواك ) توګه استعمالېږي او د بلې کلیمې سره پیوست او متصل نه راځي یا په بل عبارت په خپلواکه توګه معنی ښندي. ددغو ضمایرو مفرده بڼه دوه حالته لري. اصلي حالت او غیر اصلي حالت.

د مطلب دښه وضاحت له پاره په لاندې ډول وړاندې کېږي.

### غنبتلي ( قوي) ضمایر Strong pronoun:

| اشخاص | مفرد | | جمع |
|---|---|---|---|
| ۱ | اصلي حالت | غیر اصلي حالت | اصلي حالت |
| | زه | ما | موږ |
| ۲ | ته /ə/ | تا | تاسې |
| ۳ | نرینه: دی هغه /a/ | ده /ə/ هغه /ə/ | دوی |
| | ښځینه: دا هغه /a/ | دې /e/ هغې /e/ | هغوی |

ب : کمزوري ضمایر: Weak pronoun:

هغو ضمیرونو ته ویل کېږي چې په خپلواکه توګه کومه معنی نه ښندي او کله چې د یو نوم سره استعمال شي خپل مفهوم او معنی په ډاګه کوي.

پاتې دې نه وي چې دغه ضمیرونه ملکي نا خپلواك ضمیرونه هم دي . د مطلب دښه څرګند تیا له پاره لاندې جدول ته پاملرنه وکړئ.

کمزري ضمایر: Weak pronoun

| شخص | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | يې |
| ۳ | يې | يې |

مثالونه : کتاب مې راکړه ، کتاب مې واخیست، کتاب دې واخله. کتاب يې واخیست، کتابونه مو واخیستل ، کتابونه يې واخیستل ، کتابونه مو واخلئ.

## ۲-۱۰-۵-ملکي یا اضافي ضمیرونه:

چې د یو شي ملکیت او متعلقیت ښیي : لکه :

| اشخاص | مفرد | | جمع |
|---|---|---|---|
| ۱ | زما | | زموږ |
| ۲ | ستا | | ستاسې |
| ۳ | نارینه | دده /ə/ | د دوی |
| | ښځینه | ددې /e/ | د دوی |

زما کتاب راکړه — کتاب مې راکړه
زموږ کتابونه راکړئ — کتابونه مو راکړئ
کتاب دې واخله — کتابونه مو واخلئ
ستا کتاب چېرې دی؟ — کتاب دې چېرې دی؟
دده کتاب چېرې دی؟ — کتاب يې چېرې دی؟
ددې کتاب واخله — کتاب يې واخله.

## ۳-۱۰-۵- اشاروي ضمیرونه

**۳-۱۰-۵- اشاروي ضمیرونه:** هغو ضمیرونو ته وايي چې اشخاصو او شیزونو ته اشاره کوي. اشاري ضمیرونه هم د نوم پر ځای استعمالیږي. په پښتو ژبه کې اشاري ضمیرونه ، د شخص ، عدد ، او حالت سربېره ددريم وګړي لپاره د واټن (فاصله) له مخې ګردانيږي.

| | | مفرد | | جمع | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۳ | واټن (فاصله) | اصلي حالت | غیراصلي حالت | اصلي حالت | غیراصلي حالت |
| ۳ | نږدې | دغه /a/ | دغه /ə/ | دغه /a/ | دغو |
| ۳ | | دغه /a/ | دغې /e/ | دغه /a/ | دغو |
| ۳ | منځ | هغه /a/ | هغه /ə/ | هغه /a/ | هغو |
| ۳ | | هغه /a/ | هغې /e/ | هغه /a/ | هغو |
| ۳ | لرې | هوغه /a/ | هوغه /ə/ | هغه /a/ | هغو |
| ۳ | | هوغه /a/ | هوغې /e/ | هوغه /a/ | هوغو |

اصلي حالت: د لازمي فعل سره د فاعل په توګه په ټولو زمانو کې.

د متعدي فعل سره د فاعل په توګه یوازې په اوسمهال کې.
غیر اصلي حالت: په متعدي ماضي کې د فاعل په توګه.
د غیر مستقیم مفعول په توګه په ټولو زمانو کې.
په اضافي حالت کې د مضاف الیه په توګه

## ۴-۱۰-۵- استفهامي ضمیرونه :

چې د یوې پوښتنې له پاره په کار لوېږي چې د شخص ، زمان ، ځای، څرنګوالي او څومره والي له مخې لاندې ډولونه لري اوځینې یې د حالت له مخې اوړون مومي.

**څوك:** (چا) : چې د شخص یا اشخاصو له پاره استعمالېږي. اصلي حالت یې (څوك) او په لاندې مواردوکې استعمالېږي.
د لازمي فعل سره د فاعل په توګه په ټولوزمانو کې.
د متعدي فعل سره د فاعل په توګه یوازې په اوسمهال کې.
دمستقیم مفعول په توګه په ټولو زمانو کې.
(چا) : غیر اصلي حالت په لاندې مواردو کې استعمالېږي.

- د متعدي ماضي په فاعلي حالت کې

د غیر مستقیم مفعول په توګه په ټولو زمانوکې.
په اصلي حالت کې د مضاف الیه په توګه.

**کوم ( کومه ):** د شخص یا اشخاصو او شیانو له پاره راځي دغه ضمیر له حالت څخه سربېره د جنس له پلوه هم ګردانېږي .لکه:

کوم سړی راغی ؟ کومه ښځه راغله ؟
کوم سړي /ا/ کاروکړ کومې ښځې کار کړی دی
کوموسړیو جنګ وکړ کوموښځو کالي وګنډل

**کله** : زمان پوښتی اواوړون نه ګردانېږي.لکه :

کله راغلې ؟ کله به راشې؟ کله دې درس ولوست ، کله درس لولې؟

چېرې : دغه ضمیر ځای پوښتی ګردان نلري لکه چېري ځې، چېرې کار

کوي.

څنګه : چې د یو شخص یا شي یا یو عمل څرنګوالی پوښتي لکه :

څنګه راغلې؟ څنګه دې وپېژنده ؟ څنګه راغلې؟ څنګه دې وواهه ؟

څه: چې زیاتره د یوشي یا شخص پېژندنه پوښتي او زیاتره په اسم جنس پورې اړه لري او ګردان نلري . لکه : څه دې وکړل؟ ،دا څه دي؟ څه یې ارزښت دی؟

څو: چې داشخاصو یا اشیاوو شمېر پوښتي او څکه تل د جمع په شکل استعمالېږي لکه:

څو هلکان راغلل؟ څو نجونې راغلې؟ څو کمیسونه دې واخیستل ؟

څومره : چې زیاتره د اشیاوو اواشخاصو شمېر او د جنس د څرنګوالي او کیفیت مقدار او درجه ښیي لکه . څومره شاګردان راغلل ؟ څومره غنم دې واخیستل ؟ څومره ښکلي دي.

ولې: چې دیو عمل او پېښې عامل او سبب پوښتي لکه ولې راغلې؟ ولې درس نه وایې ؟ ولې خاندې؟ ولې دې احمد وواهه ؟/۵/

۵-۱۰-۵- پلوي یا قیدي ضمایر چې د یو عمل او فعل سمت او پلو داشخاصو له پلوه ښیي او درې بڼې لري ( را- در- ور) ۱

را- دمتکلم لوری ښیي ( لومړی شخص)

در- د مخاطب لوری ښیي ( دویم شخص)

ور- د غائب لوری ښیي ( دریم شخص)

دغه ضمایر د (تلل) فعل په سر کې لوېږي .لکه:

راځم ، درځم ، ورځم.

۶-۱۰-۵- مبهم ضمیرونه: چې د یو نامعین شخص لـه پـاره راځي او په لاندې ډول دي:

هر : چې د جنس او حالت له مخې اوړون مومي او زیاتره د مفرد لـه پـاره راځي . لکه هر ځلمي ،هرې پېغلې هر کمیس ،هره کرتۍ ، هـره پېغلـه ، هرې

پېغلې.

په اوښتي حالت کې د جمع له پاره لکه :

په هرو پنځو تنو کې يو ړوند و . زه په هرو دوو کلونو کې حج ته ځم .

د افغان جريده په هرو دوو او نيو کې يو وار خپرېږي . زه د هـرو درو ورځو وروسته پوهنتون ته ځم.

**بل:** يوازې د شمېرېدونکي مفرد نوم پر ځای راځي لکه بل څوك ، بـل هلك بله نجلۍ ، بله پېغله ، د جنس او حالت له پلوه اوړون مومي.

**نور:** د اسم جنس او جمع ښکارندويي کوي دا هم د جنس او حالت له پلوه ګردانېږي.

لکه نور هلکان ، نورې نجونې، نورغنم ، د نورو پېغلو ، نوره اوسپنه ، نورې اوبه .

**ټول** : ټول هم دنورغوندې په اسم جنس اوجمع پورې اړه لـري د جنس اوحالت له پلوه اوړون مومي . لکه : ټوله خاوره ،د ټولې خاورې ، ټول هلکان ، د ټولو هلکانو ، ټول غنم ، د ټولو غنمو.

همدارنګه ځينې، هيڅ اوڅوك هم مبهم ضميرونه دي ، څوك سر بېره چې استفهامي ضمير دی مبهم ضمير هم دی لکه : څوك نشته.

**يادونه** : څوك په اصل کې هيڅوك دی چې /هې/ لويدلې ښکاري . او اوړونې ښه هم لري لکه هيڅا ډوډی ونه خوره يا هيڅا سمه خبره ونه کړه .

**۵-۱۰-۷ - اشتراکي ضمير ( خپل)** : اشتراکي ضمير هم د نوم پر ځای په کار وړل کېږي څرنګه چې دارنګه ضمير د لومړي، دويم، اودريم شخص مفرد اوجمع له پاره يو ډول استعمالېږي، مشترك ضمير ورته وايي مشترك ضمير د جنس اوحالت له مخې ګردانېږي لکه : شپون خپله رمه پيايي . خپل درس دې لوله .

خپلوکارونوته پاملرنه وکړه . خپلو همځولو سره مرسته وکړه . بريالی له خپلې خوښې نه اوړي.

## ۱۱-۵- د موضوعاتو لنډيز او پوښتنې:

۱ خپلواك يا غير مقيد مورفيمونه هغو مورفيمونو ته ويل کېږي چې خپلواکه توګه خپله معنی ښندي لکه قلم، کتاب، اونور.

۲ په خپلواکو مورفيمونوکې نوم . قيد، اوفعل راځي.

۳ نومونه په عمومي توګه څلورګونې ډلې لري اوپه لاندې ډول دي ( اسم ، ضمير، صفت، او عدد )

۴ اسم هغې کليمې ته وايي چې بې د زمانې له اړيکې څخه دراز راز پديدو او ځيزونو څر ګندونه کوي . لکه تيږه ، لرګی ، ونه ، روغ، روغتيا، سړی اونور.

۵ نوم د درې اړخونوله مخې اوړون مومي ، جنس،عدد ، اوحالت .

۶ ضمير سره بېره پر جنس ،عدد او حالت د شخص له پلوه هم اوړون مومي.

۷ صفت چې په يو ځيز نوم اړه لري اود هغه څرنګوالی ښيي لکه تود ، سوړ، غټ،سور، ښکلی، اوداسې نور.

۸ د صفت اوموصوف ګرداني مطابقت . صفت له خپل موصوف سره مطابقت ښيي. په دې معنی چې صفت د عدد او جنس له پلوه خپل موصوف له پاره ګردانېږي لکه : ښه /ə/سړی، ښه /a/ ښځه . بد هلك ، بدې نجونې سره /a/ منه سرې منې

۹ شمېر نوم يا ( عدد اسم ) لکه ستاينوم غوندې په يو ځيز نوم اړه لري بلکې د ځيز نوم څومره والی اوتدرج ښيي .لکه يو قلم ، دوه قلمونه ، لومړی لمبر ، دويم لمبر.

۱۰ شمېر نوم هم لکه ستاينوم غوندې له خپل معدود سره لږو ډېر اوړون مومي. په پښتو ژبه کې ( يو او دوه ) خپل معدود سره د جنس له پلوه مطابقت ښيي . يو کتاب ، دوه کتابه ، يوه کتابچه ، دوې کتابچې ، يا دوه غله /ə/دوې غلې ، د درې غلو ، د دروغلو.

۱۱ شمېر نوم په څلورو ډولو وېشل کېږي . اصلي عدد لکه يو ،دوه ، درې ، څلور. و صفي يا رتبي عدد لکه لومړی ، دويم، دريم. څلورم.

کسري عدد چې د اصلي عدد یوه برخه ښیي لکه یو پر دوه ، درې پر څلور ، پنځه پر شپږ. توزیعي عدد چې د معدود وېشنه په مساوي برخو ښیي ، او د اصلي عدد له تکرار څخه جوړېږي. لکه : دوه ، دوه ، درې، درې، څلور ، څلور.

پوښتني :

۱ خپلواك مورفیمونه کوم دي؟
۲ نوم پر څو ډلو یا کټګوریو وېشل کېږي؟
۳ ستاینوم تعریف کړئ؟
۴ ضمیر او د هغه ډولونه په لنډه توګه وواياست.
۵ نوم د کومو اړخونوله مخې ګردانېږي ؟
۶ د صفت او موصوف مطابقت تشریح کړئ.
۷ شمېر نوم څه ډول نوم ته وايي؟
۸ د شمېر نوم ډولونه وواياست.
۹ د عدد اومعدود مطابقت تشریح کړئ .
۱۰ لاندې اصطلاحات تشریح کړئ ، جنس ، عدد ، حالت، شخص.
۱۱ کمزوري شخصي ضمایر کوم دي ؟ په جدول کې یې وښیاست.

# شپږم څپرکی

## قــیــد

قیدونه هغه ژبني عناصر دي چې د یو فعل د پېښېدنې څرنګوالی ښیي د ا څرنګوالی دفعل دپېښېدلو ځای یا مهال ټاکي او یا څرګندتیا ، ټینګار اوداسې نورې ځانګړتیاوې ښکاره کوي ، په پښتو کې اصلي قیدونه نه ګردانېدونکي دي خو غیر اصلي لکه ځینې نومونه اوستاینومونه چې په څېرمه ډول د قیدونو په توګه راځي ګردانېدونکي دي:

**۱-٦ د قیدډولونه** : په پښتو ژبه کې قیدونه په نه ګرادنېدونکي او ګردانېدونکو باندې وېشل کېږي.

### ۲-٦- اصلي قیدونه ( نه ګرانېدونکي قیدونه):

**۱-۲-٦- د زمان قیـد** : چې د مهال له مخې د یو فعل پېښېدنه څرګندوي لکه اوس، دمخه، پخوا ، وړاندې، سملاسي، وړمه ورځ ،وړمه شپه،پرون ورځ ، پرون شپه ، نن ،سبا ،نن شپه ، نن کهیځ، نن غرمه ، نن ماښام ، سبا ته ، بل سبا ، ګهیځ ، سهار، غرمه ، ماسپښین ، مازدیګر ،دوخته ،ناوخته ،لمر خاته ، لمر پرېواته ، سږکال، پروسږکال ، وړم کال ،لا وړم کال ، کال ته، بل کال ته .

**۲-۲-٦- دمکان قیـد**: چې د یو فعل پېښېدنه د ځای اوچاپېریال له مخې څرګندوي لکه ذلته ، هلته ، دلې ،دورې ، هورې، مخکې ، وروسته ،

شاه ته ، مخ ته ، بېرته ، وړاندې ، کښته ، پورته ، لاندې باندې ، دننه ، د باندې ،آخوا ، دېخوا ، مخامخ.

۳-۲-۶- څرګندني اوټینګاري قیدونه :چې د یو فعل دپېښېدنې څرګندتیا حالت یا ټینګاښیي . لکه په ټېه ، په ډاګه ، په څرګنده، په ځغرده ، ډانګ پیلې ، په ښکاره ، په غلا، په زیار ، په خواری ، په مېړانه ، په زور، په وېره ، په خوښه ، په زړو ، په مړو سترګو ، په ټیټو سترګو ، په جګه ،په کلکه ، په ټینګه ، زړه نازړه ، په ناسته ، په ولاړه ، په منډه ، په ملاسته ، هرو مرو ، په هر ډول ، په هڅه ، خوشې په خوشې ،څه نا څه ،لږوډېر.

## ۳-۶- ګردانېدونکي قیدونه :

ځینې قیدونه شته کله چې له لازمي فعل سره راشي هلته بیا د جملې د فاعل له پاره تصریف کېږي. خو که د متعدي فعل سره راشي هلته بیا د جملې د مفعول لپاره تصریف کېږي . البته دغه تصریف د جنس ، عدد او شخص له پلوه تر سره کېږي.[1]

### ۱-۳-۶- د لازمي فعل سره:

دلته فعل لازمي دی او قید د جملې د فاعل له پاره تضریف شوی دی.

الف:

| | |
|---|---|
| ناتېره زمانه | تېره زمانه |
| زه (مذکر) دروند دروند ګرځم | زه (مذکر) دروند دروند ګرځېدم |
| زه (مونث) درنده درنده ګرځم | زه (مونث) درنده درنده ګرځېدم |
| ناتېره زمانه | تېره زمانه |
| موږ(مذکر ) درانده درانده ګرځو | موږ (مذکر) درانده درانده ګرځېدو |

(۱) حبیب الله تږی له فاعل او مفعول سره د فعل او قید مطابقت کابل : پښتو تولنه کابل مجله : دولتي مطبعه ۱۳۵۷ ، ۷۴ مخ

| | |
|---|---|
| مور (مونث) درندې درندې ګرځو | مور (مونث) درندې درندې ګرځېدو |
| ته (مذکر) دروند دروند ګرځې | ته (مذکر) درانده درانده ګرځېدې |
| تاسې (مونث) درندې درندې ګرځئ | تاسې (مونثه) درندې درندې ګرځېدئ |
| دغه هلك دروند دروند ګرځي | دغه هلك دروند دروند ګرځېده |
| دغه نجلۍ درنده درنده ګرځي | دغه نجلۍ درنده درنده ګرځېده |
| دغه هلکان درانده درانده ګرځي | دغه هلکان درانده درانده ګرځېدل |
| دغه نجونې درندې درندې ګرځي | دغه نجونې درندې درندې ګرځېدلې |

۲-۳-۶- دلته فعل متعدي دی او قید د جملې دمفعول له پاره تصریف شوی دی.

ب:

| | |
|---|---|
| نا تېره زمانه | تېره زمانه |
| تور ما (مذکر) پوخ پېژني | تور زه (مذکر) پوخ پېژندلم |
| تورما (مونث) پخه پېژني | تور زه (مونث) پخه پېژندلم |
| تور مور (مذکر) پاخه پېژني | تور مور (مذکر) پاخه پېژندلو |
| تور مور (مونث) پخې پېژني | تور مور (مونث) پخې پېژندلو |
| ناتېره زمانه | تېره زمانه |
| تورتا (مذکر) پوخ پېژني | تور تا (مذکر) پوخ پېژندلې |
| تور تا (مونث) پخه پېژني | تورتا (مونث) پخه پېژندلې |
| تور تاسې (مذکر) پاخه پېژني | تورتاسې (مذکر) پاخه پېژندلئ |
| تور تاسې (مونث) پخې پېژني | تور تاسې (مونث) پخې پېژندلئ |
| تور دغه هلك پوخ پېژني | تور دغه هلك پوخ پېژنده |
| تور دغه نجلۍ پخه پېژني | تور دغه نجلۍ پخه پېژندله |
| تور دغه نجونې پخې پېژني | تور دغه نجونې پخې پېژندلې |

که چېرې مورد الف او ب ردیف مثالو نوته ځیر شو وینو چې د الف په ردیف کې د جملې فعل لازمي دی او قید (دروند-دروند) دجملې د فاعل لپاره تصریف شوی دی هلته چې د جملې فاعل مذکر وي قید /دروند دروند / په

شکل خو هلته چې د جملې فاعل جمع مذکر دی قید د / دراندہ دراندہ / په بڼه همدارنګه هلته چې د جملې فاعل مونث دی قید د /در ندې در ندې / په بڼه ظاهر شوی دی. همدارنګه د /ب/ ردیف مثالونه راښیي چې د جملې فعل متعدي دی او قید دجملې د مفعول له پاره ګردان شوی دی.

د /ب/ ردیف په مثالونو کې هلته چې مفعول مفرد مذکر دی قید د /پوخ/ په شکل خو هلته چې د جملې مفعول مفرد مونث دی قید د /پخه / په بڼه همدارنګه هلته چې د جملې مفعول جمع مذکر دی قید د /پاخه/په شکل او کله چې د جملې مفعول جمع مونث دی قید د /پخې/ په شکل ګردان شوی دی.

نو د پورتنیو بېلګو څخه څرګندېږي چې ځینې قیدونه هم تصریف کېږي. په دې معنی چې کله د جملې فعل لازمي دوي قید دجملې د فاعل له پاره د جنس او عدد له پلوه تصریفېږي او کله چې د جملې فعل متعدي وي نو هلته بیا قید د جملې د مفعول له پاره د جنس او عدد له پلوه ګردانېږي.

## ۴-۶- د موضوعاتو لنډیز او پوښتنې :

۱ قید د یو فعل د پېښېدنې څرنګوالی ښیي دا څرنګوالی د فعل د پېښېدلو ځای ، مهال، څرګندتیا او نورې ځانګړتیاوې ښکاره کوي.

۲ په پښتو ژبه کې اصلي قیدونه نه ګردانېدونکي دي خو غیر اصلي قیدونه لکه نومونه او صفتونه چې کله کله دقیدونو په توګه راځي ګردانېدونکي دي . اصلي قیدونه په لاندې ډول دي.

الف: د زمان قید چې د زمان او وخت له مخې د فعل پېښېدنه څرګندوي .لکه : اوس ، دمخه ، پخوا ، وړمه ورځ، پرون ، سبا کال، نن ورځ.

ب: د مکان قید : چې د یو فعل پېښېدنه دځای اوچاپیریال له مخې څرګندوي لکه دلته ، هلته ، لاندې، باندې، اخوا ، دېخوا.

ج: څرګندنې اوټینګاري قیدونه: چې د یوفعل د پېښېدنې حالت یاټینګار ښیي لکه : په پټه ، په ښکاره ، په ډاګه ، په زیار ، زړه نازړه ،

۳ ګردانېدونکي قيدونه: ځيني قيدونه شته که چېرې د لازمي فعل سره راشي هلته بيا د جملې د فاعل له پاره او که د متعدي فعل سره راشي د جملې د مفعول له پاره تصريف کېږي. لکه د لازمي فعل سره : زه (مذکر) درونډ درونډ ګرځم / زه (مونث) درنده درنده ګرځم . مونږ (مذکر) درانده درانده ګرځو. مونږ (مونث) درندې درندې ګرځو . د متعدي فعل سره : احمد ما ( مذکر) پوخ پېژني ،احمد ما ( مونث) پخه پېژني ، احمد مونږ (مذکر) پاخه پېژني ، احمد مونږ ( مونث) پخې پېژني .

## پوښتنې:

۱ قيد تعريف کړئ.

۲ اصلي قيدونه په څو برخو وېشل کېږي؟

۳ د مکان قيد مثالونه په بېلګو کې وښياست.

۴ څرګندني او ټينګاري قيدونه کوم دي؟

۵ ګردانېدونکي قيدونه کوم دي؟

۶ ګردانېدونکي قيدونه که چېرې له لازمي فعل سره راشي د جملې د کوم عنصرله پاره تصريف کېږي؟

۷ لاندې جملې په غور سره ولولئ اوقيد وښياست.
احمد په خندا راغی ، احمد پروسږکال بريالی نشو.
زه ډانګ پيېلې تا ته وايم چې دا کار مه کوه.
پرون ملا احمدته وويل چې کيهځ راشه.
زه له تاسره څه نا څه کار لرم.

۸ لاندې جملې په غور سره ولولئ او واياست چې قيد د جملې دکوم عنصر له پاره تصريف شوی دی. احمد تود تود ګرځي ، ملالۍ توده توده ګرځي، احمد او محمود تاوده تاوده ګرځي. ملالۍ او تورپيکۍ تودې تودې ګرځي. زه زرمينه پخه پېژنم. احمد ملالۍ او تورپېکۍ پخې پېژني . مونږ احمد اومحمود پاخه پېژنو.

# اووم څپرکی

## فعل

فعل دويناد يو عمده جز په توګه په يوه زمانه کې د کار په کولو او يا د يوې پېښې په پېښېدو دلالت کوي يا په بل عبارت فعل هغې کلمې ته وايي چې په يوه زمانه کې ديو کار او پېښې په کېدو دلالت کوي. لکه احمد خط ليکي، احمد به کورته لاړشي، زرمينې خط وليکه. فعل پراخ مفهوم لري اوبېلا بېل موضوعات په برکې نيسي.

څرنګه چې يو فعل په يوه زمانه کې دکار او پېښې په پېښېدو دلالت کوي په ټاکلي شخص اوټاکلې زمانې پورې اړه لري ، فعل ځانګړې رېښې لري ، همدارنګه فعل د اشتقاق ځانګړي صورتونه او وجه لري. فعل دوينا مهم اوعمده جز تشکيلوي چې له فعل څخه پرته جمله نيمګړې بلل کېږي او کله هم فعل په يوازې توګه يوه جمله جوړوي.

### ۱-۷- د فعل ګرداني اړخونه:

په پښتو ژبه کې يو فعل په عمومي توګه د لاندې اړخونوله مخې ګردانېږي :

### ۱-۱-۷- شخص:

په پښتو ژبه کې فعل شخص څرګندوي. په فعل کې د شخص د اړخ څرګندېدل هماغه تصريفي روستاړي دي چې د فعل په اصل ( رېښه ) پورې نښلول کېږي لکه:

زه خورم /م/ /əm/

ته خور+ ې /e/

دی خور + ي /i/
دا خور+ ي /i/
په پورتنيو مثالونو کې (ام – ې – ي ) د لومړي ، دويم ، اودريم شخص مفرد ځرګندوی دي.

## ۲-۱-۷: عدد :

په پښتو ژبه کې د شخص د اړخ ځرګندېدل د مفرد او جمع بڼې لري په فعلونو کې دمفرد او جمعي د بڼې د ځرګندېدو له پاره مشخص او ټاکلي مورفيمونه نشته بلکې هماغه د شخص تصريفي روستاړي دي چې د مفرد اوجمعي بڼې هم ښکاره کوي لکه په لاندې بېلګو کې :

| (الف) مفرد | (ب) جمع |
|---|---|
| زه کتاب لول+ام | موږ کتاب لول+و |
| ته کتاب لول+ې | تاسې کتاب لول+ئ |
| دی کتاب لول+ي | دوی کتاب لول+ي |
| دا کتاب لول+ي | دوی کتاب لول+ي |

په پورته مثالونو کې د /الف / په رديف کې / ام –ې- ي) روستاړي د لومړي ، دويم اودريم شخص ځرګندوی دی مګر په /ب/ رديف کې / و- ئ-ي) د لومړي ، دويم اودريم شخص د جمع ځرګندوی دي.

يادونه : ددريم شخص په مورد کې په ناتېره زمانه کې د دريم شخص مفرد اوجمعې له پاره يوازې يو شکل د /ي/ په بڼه ظاهر شوی دی دا ددې معنی لري چې په ناتېره زمانه کې د دريم شخص په مورد کې فعل يوازې د شخص له پلوه خپل فاعل سره مطابقت ښودلی دی نه د عدد له پلوه.

خو د لومړي اودريم شخص په مورد کې فعل د فاعل له پاره د عدد له پلوه په منظمه توګه ګردان شوی په دې معنی هلته چې د جملې فاعل موږ اوتاسې جمع دي تصريف روستاړي د /و- ئ / په بڼه ، خو ددريم شخص په مورد کې يوازې د /ي/ په بڼه ځرګند شوي دي.

**۳-۱-۷- جنس** : چې شخص نارینه وي اوکه ښځینه . البته په پښتو ژبه کې د جنس څرګندېدل یوازې د دویمې ریښې په ګردان کې څرګندېدای شي یا په بله وینا د جنس مساله یوازې په تېر مهال څرګندېږي هغه هم د دریم شخص په مورد کې د لومړي اودویم شخص په مورد کې که ښځینه اوکه نرینه دي فعل یوازې د شخص اوعدد له پلوه مطابقت او سمون ښیي.

د موضوع د ښه څرګندتیا له پاره لاندې بېلګو ته توجه وکړئ.

نا تېره زمانه

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| زه پاځېږ+ام /əm/ | موږ پا ځېږ + و /u/ . |
| ته پاځېږ+ې /e/ | تاسي پاځېږ+ئ /əy/ |
| دی پاځېږ+ي /i/ | دوی پاځېږ+ي /i/ |
| دا پاځېږ+يْ /i/ | دوی پاځېږ+ي /i/ |

تېره زمانه

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| زه پاځېد+ام /əm/ | موږ پاځېد+و /u/ |
| ته پاځېد + ې /e/ | تاسئ پاځېد+ئ /əy/ |
| دی پاځېده + ∅ /a/ | دوی (جمع مذکر) پاځېد+ال /əl/ |
| دا پاځېد+له /la/ | دوی ( جمع مونث) پاځېد+لې /Le/ |

په پورتنیو مثالونو کې په ناتېره زمانه کې فعل د لومړي او دویم شخص په مورد کې د شخص او عدد له پلوه د فاعل له پاره تصریف شوی دی . خو د دریم شخص په مورد کې فعل یوازې د شخص له پلو ه د فاعل له پاره ګردان شوی دی.

خو په تېره زمانه کې د لومړي دویم شخص په مورد کې فعل بیا د شخص او عدد له پلوه د فاعل له پاره تصریف شوی دی مګر د دریم شخص په مورد کې فعل سربېره پر شخص اوعدد د جنس له پلوه هم د فاعل سره مطابقت ښودلی

دی.

## ۲-۷- دفعل وجه :

فعل داستعمال او معنوي افادې له پلوه بېلابېلې بڼې او شکلونه ځان ته نیسي . نوپه دې لحاظ فعل د بیان د طرز او شکل له پلوه په مختلفو ډولونو وېشل کېږي. چې په لنډه توګه لاندې ډولونه لري.

الف: اخباري وجه یا صورت چې د یو کار کېدل دخبر په دود بیانوي لکه بریالی خط لیکلي دی ، توریالی اوس لوی شوی دی، ځلمی راغلی دی.

ب: شرطي صورت : چې یو کارد شرط په حالت بیان کړي لکه : که درمل وخورې جوړ به شې. که درس ولولې کامیاب به شې.

ج: چې د یوکار کېدل امکاني صورت دامکان په صورت بیانوي یا په بل عبارت د یو کار کېدل یا نه کېدل ترې ځرګندېږي د / شول اوکېدل/ مرستیال فعلونو په ګردانولو سره تر سره کېږي. ما ولوستلی شو ، تا وخوړلای شو، ده ولیکلای شو.

د : احتمالي صورت : په دغه صورت کې د یو کار سرته رسول په شك او تردد بیانوي ما به ډوډی خوړلی ، مور به درس لوستلی. تا به احمد وهلی.

هـ: امري صورت : چې دیو کار کېدل د امر او حکم په شکل ځرګند کړي لکه: زما کتاب راکه ، دلته کېنه ، هلته لاړ شه .

و : مصدري صورت : چې د کار کېدل دزمان او وخت له تاکل کېدو پرته ځرګند کړي،فعل په دغه صورت کې دمصدر په بڼه راځي لکه ذکوت ورکول فرض دی، لیدل کتل مو سره وشول.

ز: تمنایي صورت : چې د یو کار هیله او تمنا ځرګندوي چې تر مسندالیه د مخه د کاشکې ادات ورسره یو ځای کېږي لکه کاشکې زه راغلی وای، کاشکې یو ځل مې لیدلای وای .

## ۳-۷- د فعل صيغه :

په پښتو ژبه کې فعل د دوو صيغو لرونکی دی ، معلوم او مجهول د فعل صيغه هغه وخت معلومه بلل کېږي چې د جملې فاعل معلوم وي يا په بل عبارت فاعل په عين زمان کې مسندالیه وي لکه احمد راغی . محمود خط وليکه ، ځلمی ښوونځي ته ولاړ.مجهول فعل ءچې فاعل يې څرګند او معلوم نه وي او مفعول دمسندالیه په توګه راغلی وي لکه : احمد ووهل شو ، ډوډۍ وخوړل شوه، خط وليکل شو

## ۴-۷- د فعل معنوي اړخ ( لازمي اومتعدي) :

په پښتو ژبه کې فعل د معنی له پلوه په لازمي او متعدي وېشل کېږي.
الف: لازمي فعل : هغه فعل ته وايي چې مفعول نه قبلوي او فعل په تېره او ناتېره زمانه کې د جملې د فاعل لپاره تصريف کېږي يا دا چې فعل په تېره زمانه کې د جملې د فاعل سره مطابقت ښيي چې البته دغه مطابقت په نا تېره زمانه کې د لومړي او دويم شخص په مورد کې د شخص او عدد له پلوه او د دريم شخص په مورد کې يوازې د شخص له پلوه فعل د فاعل لپاره تصريف کېږي. په تېر مهال کې لازمي فعل د لومړي او دويم په مورد کې د شخص او عدد له پلوه د جملې د فاعل له پاره تصريف کېږي خو ددريم شخص په مورد کې سر بېره پر شخص او عدد د جنس له پلوه هم فعل سره سمون ښيي. د موضوع د ښه څرګند تيا لپاره لاندې جدولونو ته توجه وکړئ.

| ناتېره زمانه: شخص | مفرد | جمع | تېره زمانه: شخص | مفرد | جمع |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | زه کښېن + ام /əm/ | مونږ کښېن+و /u/ | ۱ | زه کښېناست+ ام /əm/ | مونږ کښېناست+و /u/ |
| ۲ | ته کښېن+ې /e/ | تاسي کښېن +ئ /əy/ | ۲ | ته کښېناست+ ې /e/ | تاسي کښېناست+ئ /əy/ |
| ۳ | دی کښېن +ي /i/ دا کښېن +ي /i/ | دوی کښېن+ ي /i/ | ۳ | دی کښېناست /ə/ دا کښېناست /له/ | دوی (مذکر) کښېناست+ال دوی (مونث) کښېناست+لې. |

په پورتني جدول کې په ناتېر مهال گردان شوي فعل کې د لومړي او دويم شخص په مورد کې د شخص او عدد له پلوه فعل د فاعل له پاره تصريف شوی دی خو د دريم شخص په مورد کې فعل يوازې د شخص له پلوه له فاعل سره مطابقت ښودلی دی.

په تېره زمانه کې فعل د لومړي او دريم شخص په مورد کې د شخص او عدد له پلوه خو د دريم شخص په مورد کې د جنس له پلوه هم فعل د فاعل سره سمون ښودلی دی په پښتو ژبه کې ټول فعلونه که لازمي دي او که متعدي په ناتېره زمانه کې د فاعل سره مطابقت ښيي خولازمي فعل په دواړو زمانو کې د فاعل لپاره تصريف کېږي.

## ب: متعدي فعل :

متعدئ فعل هغه فعل ته وايي چې مفعول قبلوي اوفعل په تېره زمانه کې د جملې د مفعول لپاره اوړون مومېي. البنه دغه اوړون د شخص ، عدد او جنس له پلوه تر سره کېږي. لاندې مثالونو ته پاملرنه وکړئ.

### تېره زمانه :

| شخص | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | احمد زه ووهل+ام /əm/ | احمد موږ ووهل+و /u/ |
| ۲ | احمد ته ووهل+ې /e/ | احمد تاسې ووهل+ئ /əy/ |
| ۳ | احمد دی وواهه /ə/<br>احمد دا وو هه/ له/ | احمد دوی(مذکر)وواهـ /ال/əl/<br>احمد دوی (مونث) وو /لې/le/ |

په پورتني جدول کې هلته چې د فعل مفعول لومړی او دویم شخص مفرد وي فعلي روستاړی د /ام e–/ اوکله چې د فعل مفعول /موږ او تاسې / جمع وي ، فعلي روستاړي د /و-ئ/ په بڼه ظاهرې شوې دي ځکه په فعلونو کې د مفرد او جمع بڼې د څرګندېدو له پاره مشخص او ټاکلي مو رفيمونه نشته بلکې هماغه دشخص تصريفي روستاړي دي چې د مفرداو جمعې شکلونه هم ښکاره کوي(۲-۲-۷-)

خو ددريم شخص په مورد کې په تېره زمانه کې د جنس مساله هم رابرسېره کېږي لکه چې په پورتني جدول کې وينو هلته چې د فعل مفعول دريم شخص /دی –دا/ مفرد مذکر او مفرد مونث دی فعلي روستاړي د /ə- له / په بڼه همدارنګه هلته چې دفعل مفعول /دوی/ جمع مذکر او جمع مونث دی فعلي روستاړي د / ال/ / لې/ په بڼه څرګند شوي دي نو په نتيجه کې ويلي شو چې د

دریم شخص په مورد کې فعل په تېره زمانه دجنس له پلوه هم دمفعول لپاره تصریف کېږي.

یادونه: په پښتو ژبه کې یو شمېر افعال شته چې په نحوي لحاظ د لازمي افعالو په لړ کې درېږي یعنې مستقیم مفعول نه غواړي . دغه فعلونه په ناتېره زمانه کې کټ مټ د نورو ټولو لازمي افعالو په څېر د خپل فاعل لپاره تصریف کېږي مگر په تېره زمانه کې تل په یوه شکل ظاهرېږي او د شخص عدد اوجنس له پلوه کوم اوړون نلري . لاندې مثالونو ته توجه وکړئ.

| ناتېره زمانه | تېره زمانه |
|---|---|
| زه خاند+ م /əm/<br>ته خاند+ې /e/ | ما خند+ ال /əl/<br>تا خند+ال /əl/ |
| دی خاند+ ي / اَي/<br>دا خاند+ي /i/ | ده خند+ ال /əl/<br>دې خند+ ال /əl/ |
| احمد خاند+ ي /i/<br>ملالۍ خاند+ي /i/ | احمد خند+ال /əl/<br>ملالۍ خند+ال /əl/ |
| موږ خاند+ و /u/ | موږ خند+ال /əl/ |
| تاسې خاند+ ئ /əy/ | تاسې خند+ال /əl/ |
| دوی(مذکر) خاند+ ي /i/ | دوی خند+ال /əl/ |

| | |
|---|---|
| دوي(مونث) خاند+ي /اِ/ | دوی خند+ال /əl/ |
| دغه هلکان خاند+ ي /اِ/<br>دغه نجوني خاند+ي /اِ/ | دغو هلکانو خند+ال /əl/<br>دغو نجونو خند+ال /əl/ |
| احمد اومحمود خاند+ي /اِ/<br>تورپیکی اوملالی خاند+ي /اِ/ | احمد او محمود خندل /əl/<br>تورپیکی اوملالی خند+ال /əl/ |

کوم افعال چې دغه عادت ښيي دهغو شمېر محدود دی او بايد چې د ژبې زده کوونکوته دسهولت لـه پاره لست کړی شي . نو د موضوع د ښه وضاحت لـه پاره ددغې ډلې فعلونو بشپړ لست او په ناتېره او تېره زمانه کې د هغـوی ريښې د مثالونو سره وړاندې کېږي.

ناتېره زمانه تېره زمانه

| ريښه | مثال | ريښه | مثال |
|---|---|---|---|
| خاند | تورخاند ي /اِ/ | خند | احمد او تور خند ال /əl/ |
| ژاړ | پري ژاړ ي /اِ/ | ژړ | ليلی او پري ژړ ل /əl/ |
| لامب | ليلی لامب ي /اِ/ | لمب | ليلی لمب ل /əl/ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| زانګ | زرمينه زانګ ي /i/ | زنګ | زرميني زنګ ل /əl/ |
| ناڅ | ملالۍ ناڅ يږ /i/ | نڅ | ملالۍ نڅل /əl/ |
| غاپ | سپۍ غاپ ي /i/ | غپ | سپي غپل /əl/ |
| انګ | خر انګ ي /i/ | انګ | خره انګل /əl/ |
| ټوخ | سړی ټوخ ي /i/ | ټوخ | سړي ټوخل /əl/ |
| ششن | اس ششن ي /i/ | ششن | اس ششنل /al/ |
| دانګ | تور دانګ ي /i/ | دانګ | تور دانګل /əl/ |

له پورتنيو مثالونو څخه دا نتيجه لاس ته راځي چې دغه ډله افعال په تېره زمانه کې د جملې د فاعل سره مطابقت نه د ی ښودلی که فاعل مفرد دی که جمع اويا مونث دی فعل په يو شان ګردان شوی دی .

## ۵-۷- د فعل اصل :

ريښه د فعل اصل اوبنسټ دی ، ريښه هغه کليمې ته وئيل کېږي چې تاړی په هغه پورې نښلي اونوې کليمې جوړوي . ريښه نه يوازې د فعل په برخه کې بلکې د نومونو په برخو کې هم دڅېړنې او تحقيق وړ ده همدارنګه ترکيبي اسمونه هم ريښه اوهم تاړي لري لکه : غمجن ، هنرمند ،شته مند ، چې په پورته مثالونو کې د (غم ، هنر ، شته ) ريښه او ( جن، مند) تاړي دي.

ريښه پر دوه ډوله ده . يوه د ناتېرې او بله تېرې زمانې. لکه ( خور ،اغوند ) د ناتېرې زماني ريښې دي او ( خوړ_ اغوست، لوست، کښېناست) د تېرې زمانې . مستقبل فعل کومه جلاريښه نه لري بلکې دناتېرې زمانې ريښه (حال) ورسره شريکه ده يا په بل عبارت د ناتېرې زمانې (حال) او مستقبل ريښه يوه ده خو يوازې د مستقبل فعل سره يو جز يعنې /به/ د معاون په حيث زياتېږي لکه :

زه به خورم ، زه به اغوندم ، زه به کښېنم ، زه به لولم.

۶-۷- د پښتو فعلونو ډله بندي د هغوی د اصل پر اساس:

پښتو فعلونه د خپل مورفالوژيکي جوړښت له پلوه په درو عمده برخو وېشل کېږي .

۱-۶-۷- هغه ډله افعال چې په ناتېره او تېره زمانه کې فعل يوه ريښه لري يعنې په ناتېره او تېره زمانه کې فعل يوه ريښه لري او په دوو ډلگيو وېشل کېږي .

د الف ډله : دغه ډله فعلونه په نحوي لحاظ د متعدي فعلونو په ډله کې راځي او شخصي پايلې (خاتمې) يې نېغ په نېغه په ريښه پورې نښلي په ناتېره زمانه کې دجملې د فاعل له پاره او په تېره زمانه کې د جملې د مفعول د پاره تصريف کېږي.
د کار د اسانتيا لپاره لومړی ددغې ډ لې فعلونه بشپړ لست وړاندې کېږي او په دريمه برخه کې څو فعلونه د مثال په توگه گردانېږي او ځانگړتياوې په گوته کېږي
ددې فعلونو مصدري (اسم فعل ) بڼې دا دي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| تړل | ټاکل | ګڼل | تورل |
| پلټل | څښل | ښندل | روزل |
| ګنډل | څټل | شیندل | نرغمل |
| څنډل | څېړل | غندل | څیرل |
| پوښتل | رټل | کړل | ګڼل |
| پلورل | زبېښل | ګالل | کاږل |
| اچول | ژغورل | لړل | رېبل |
| استول | سپارل | لیکل | لونل |
| لېږل | ستایل | مینځل | راوړل |
| ښیل | داغل | وهل | ساتل |
| پالل | شاربل | منل | لېښل |
| ټومبل | شړل | لوښل | وړل |

دا دی د مطلب د ښه څرګندتیا له پاره ددغې ډلې فعلونو څخه یو څو فعلونه د بېلګې په توګه ګردانېږي.

تړل ( ریښه = تړ)

ناتېره زمانه

| شخص مفرد | ریښه | فعلي خاتمه | شخص | جمع | ریشه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ زه | تړ | ام əm | ۱ | موږ | تړ | ولا |
| ۲ته | تړ | ې /e/ | ۲ | تاسې | تړ | ئ əy |
| ۳ دی دا | تړ | ي /i/ | ۳ | دوی | تړ | ي /i/ |

(مفرد — جمع)

## تیره زمانه

| مفرد | | | | جمع | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فاعل | مفعول | دفعل رېښه | فعلي خاتمه | فاعل | مفعول | دفعل رېښه | فعلي خاتمه |
| زه( ما) | احمد ملالۍ | تړ | /ə/ /له/ | موږ | احمد او محمود ملالۍ او تورپېکۍ | تړ | ال əL لې le |
| ته (تا) | احمد ملالۍ | تړ | /ə/ /له/ | تاسې | احمد او محمود تورپېکۍ او ملالۍ | تړ | ال əl لې Le |
| دی(ده) دا(دې) | احمد ملالۍ | تړ | /ə/ /له/ | دوی | احمد او محمود تورپېکۍ او ملالۍ | تړ | ال əL لې Le |

موږ وینو چې په ناتېره زمانه کې فعل د جملې د فاعل له پاره تصریف شوی او فعلي خاتمې (ام – و – ي – ئ) په بڼه ظاهرې شوې دي او د فعل رېښه د /تړ/ په بڼه راغلې ده.

همدارنګه په تېرې زمانې کې هلته چې د جملې مفعول مفرد مونث او مفرد مزکر وي فعلي خاتمې د / له - ə/ په بڼه او هلته چې مفعول جمع مزکر او جمع مونث وي فعلي خاتمې په ترتیب سره د /اِل او لې/ په شکل څرګندې شوې دي او د فعل رېښه لکه د ناتېرې زمانې په شان د /تړ/ په بڼه راغلې ده.

بل مثال : ګنډل (ګنډ = رېښه)

ناتېره زمانه

| شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه | شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|
| | مفرد | | | جمع | |
| ۱ زه | ګنډ | ام /əm/ | موږ | ګنډ | و /u/ |
| ۲ ته | ګنډ | ې /e/ | تاسې | ګنډ | ئ /əy/ |
| ۳ دی دا | ګنډ | ي /i/ | دوی | ګنډ | ي /i/ |

تېره زمانه

| فاعل | مفعول | دفعل ريښه | فعلي خاتمه | فاعل | مفعول | دفعل ريښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| زه(ما) | کميس کرتی | ګنډ | /ə/ /ـلم/ | موږ | کميسونه لمنې | ګنډ | ال /əL/ لې /Le/ |
| ته(تا) | کميس کرتی | ګنډ | /ə/ /ـلم/ | موږ تاسې | کميسونه لمنې | ګنډ | ال /əl/ لې /Le/ |
| دی(دا) دا(دوی | کميس کرتی | ګنډ | /ə/ /لم/ | موږ دوی | کميسونه لمنې | ګنډ | ال /əl/ لې /le/ |

له پورتنيو مثالونو څخه ځرګندېږي چې په ناتېره زمانه کې فعل د جملې دفاعل له پاره تصريف شوی دی او فعلي خاتمې په ترتيب سره ( əm ، e, ، əy, u او ي ) په بنه ظاهري شوي دي. خو په تېره زمانه کې ځرنګه چې فعل.

متعدي دی فعل د جملېد مفعول له پاره تصریف شوي دی هلته چې د جملې مغعول / کمیس ، کورتی/ دي فعلي خاتمي د / ə - له / په بڼه او هلته چې د جملې معقول / کمیتونه او لمنې / دي مفلي خاتمې د / L ə-Le / ، / ال - لې/ په شکل راغلي دي خو په دوارو زمانو کې د فعل ریښه په یو شان /ګنډ/ په بڼه ظاهره شوې ده نو ویلی شو چې / ګنډل/ ریښه په تېره او ناتېره زمانه کې خپله بڼه نه ده اړولې او په یو شان ګردان شوې ده.

نو په نتیجه کې ویلی شو چې ددغې ډلې ټول فعلونه کټ مټ همدغه تصریفي بڼې لري یعني په ناتېره زمانه کې د جملې دفاعل له پاره او په تېره زمانه کې د مغعول له پاره تصریف کېږي او دفعل ریښه په دوارو مهالونو کې خپله بڼه نه اړوي.

ددغې ډلې فعلونو مطلق شکل له غیر مطلق شکل (استمراري) د / و wə / دمختارې په راورو سره چې د مطلقیت د پریفکس په نامه نوموړل شوی دی توپیر کېدای شي.

| مطلق شکل | غیر مطلق شکل(استمراري ماضي) |
| --- | --- |
| احمد کتاب و - پلټ /ə/ | احمد کتاب پلټ /ə/ |
| احمد لمنه و - ګنډ /له/ | احمد لمنه ګنډ /له/ |
| احمد محمود و - پوښت /ə/ | احمد محمود پوښت /ə/ |
| احمد توت و - شنډ /ال /əl/ | احمد توت شنډ JHəL |
| احمد کمیس - و پلور /ə/ | احمد کمیس پلور /ə/ |
| احمدلیك و- استوه /ə/ | احمد لیك استو /ə/ |
| ما خپل ورور و- پاله /ə/ | ما خپل ورور پال /ə/ |
| مطلق شکل (ماضي) | غیر مطلق شکل (استمراري ماضي) |
| ما ګل و+ ټومب /ə/ | ماګل ټومب /ə/ |
| ملالی لوښی و+څټ /ə/ | ملالی لوښی څټ /ə/ |
| ده ورځپاڼه و+ څیرله /له/ | ده ورځپاڼه څیر /له/ |

| | |
|---|---|
| احمد ملالی رټ /له/ | اجمد ملالی و+رټ /له/ |
| ما غرکه شارب/له/ | ماغَرکه و+شارب /له/ |
| توريالی ملالی غند /له/ | توريالي ملالی و+غند /له/ |

په همدي ډول وينو چې ددغې ډلې فعلونه شکل له غير مطلق شکل څخه د /و wə/ مختاړي په واسطه توپير کېداى شي.

د /ب/ ډله: دغه ډله فعلونه د لازمي او متعدي دواړه شکلونه لري ددغو فعلونو متعدي شکل د لازمي څخه جوړېږي په دې ډول چې د اوسمهال په ريښه پورې دمصدر جوړولو له پاره د / يدل/ پر ځاى د / ول / روستاړى راوړل کېږي.

دا دي دموضوع د ښه څرګندتيا له پاره ددغې ډلې فعلونه لازمي او متعدي شکلونه (مصدري شکلونه ) په لاندې ډول ښودل کېږي.

| لازمي ښه | متعدي ښه | لازمي ښه | متعدي ښه |
|---|---|---|---|
| لړزېدل | لړزول | لګېدل | لګول |
| څرېدل | څرول | تبنتېدل | تبنتول |
| غوړېدل | غوړول | څغلېدل | څغلول |
| رېږېدل | رېږول | څنډېدل | څنډول |
| څورېدل | څورول | غوړېدل | غوړول |
| چغېدل | چغول | لمبېدل | لمبول |
| خوځېدل | خوځول | لوېېدل | لوېول |
| ډارېدل | ډارول | نښېدل | نښول |
| غړېدل | غړول | نړېدل | نړول |
| شلېدل | شلول | ژړېدل | ژړول |
| غورځېدل | غورځول | خنډېدل | خنډول |
| وېرېدل | وېرول | بهېدل | بهول |

پرزېدل پرزول پاڅېدل پاڅول

اوس گورو چې ددغې ډلې فعلونو (متعدي شکل) په تېره او ناتېره زمانه کې دفعل رېښه په یو شان گردانېږي او فعل خپله رېښه نه بدلوي.

د مطلب دښه وضاحت له پاره لاندې جدولونو ته پاملرنه وکړئ.

رېول (رېو= رېښه) ناتېره زمانه

مفرد جمع

| شخص | د فعل رېښه | فعلي خاتمه | شخص | دفعل رېښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱-زه | رېو | ام /ðm/ | موږ | رېو | و /u/ |
| ۲-ته | رېو | ې /e/ | تاسې | رېو | ئ /ðy/ |
| ۳-دی دا | رېو | ي /i/ | دوی | رېو | ي /i/ |

تېر مهال

د رېول (رېو = رېښه)

| فاعل | مفعول | دفعل | فعلي | فاعل | مفعول | دفعل | فعلي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

| | | رېښه | خاتمه | | | رېښه | خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱. ما | بیرغ | رپو | /ə/ | موږ | بیرغ | رپو | /ə/ |
| تا | بیرغ | رپو | /ə/ | تاسي | بیرغ | رپو | /ə/ |
| ده دي | جنډه | رپو | /əL/ له/ | دوی | جنډه | رپو | /əL/ له/ |

له پورتنیو مثالونو څخه جوتېږي چې د فعل رېښه /رپو/ په ناتېره او تېره زمانه کې په یو شکل راغلې ده. دادی ددغې ډلې د یو بل فعل ګردان ته پاملرنه وکړئ.

غولول (غولو= رېښه)

| شخص | دفعل رېښه | فعلي خاتمه | شخص | دفعل رېښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|
| زه | غولو | ام /əm/ | موږ | غولو | و /u/ |
| ته | غولو | ې /e/ | تاسي | غولو | ئ/ əy/ |
| دی<br>دا | غولو | ي /i/ | دوی | غولو | ي /i/ |

په تېر مثال کې د فعل رېښه د /غولو / په بڼه څرګنده شوې ده، او فعلي خاتمې په ترتیب سره د /ام –ې-ي-و-ئ/ په شکل څرګند شوي دي.

مفرد تېر مهال جمع

| فاعل | مفعول | دفعل ريښه | فعلي خاتمه | فاعل | مفعول | دفعل ريښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ما | ملالۍ | غولو | له ، La | موږ | احمد او محمود | غولو | ال/əl |
| تا | ملالۍ | غولو | له Lā | تاسي | ملالۍ او تورپېکۍ | غولو | لې le |
| ده | احمد | غولو | /ə/ | دوی | احمد او محمود | غولو | ال əl |
| دي | ملالۍ | غولو | له | | | | |

له پورتنيو مثالونو څخه جوتېږي چې د فعل ريښه ، /غولو/، په ناتېره اوتېره زمانه کې په يوه بڼه /غولو/ په شکل راغلې ده.

څرنګه چې فعل متعدي دی په ناتېره زمانه کې دجملې د فاعل له پاره تصريف شوی دی او په تېره زمانه کې د جملې دمفعول له پاره ګردان شوی دی او فعلي خاتمې په ترتيب سره /ə/ د مفرد مذکر لپاره /له/ د مفرد مونث لپاره /ال/ دجمع لپاره / Le / لې د جمع مونث له پاره راغلي دي او دفعل ريښه په تېره او ناتېره زمانه کې په يو شان /غولو/ په بڼه راغلې ده .

يادونه: ددغې ډلې فعلونو مطلق له غير مطلق شکل ( استمراري) څخه د / او / /wə/ ـ د مختاړي په زياتولو سره توپير کېدای شي .

دادی دموضوع دښه روښانتيا لپاره د دغې ډلې د فعلونو مطلق شکل له غير

مطلق شکل څخه په مثالونو کې ښودل کېږي او کټ مټ هغه عادت څرګندوي چې د الف ډلې څرګندول.

| استمراري ماضي | | مطلقه ماضي | |
|---|---|---|---|
| رېښه | فعلي خاتمه | رېښه | فعلي خاتمه |
| ما ونه لړزو | /له/ | ماونه وکړزو | /له/ |
| مالرګی لګو | /ǝ/ | ما لرګی .لګو | /ǝ/ |
| ما شېدې څخو | /لې/ | ما شېدې و څخو | /لې/ |
| ما احمد درو | /ǝ/ | ما احمد ودرو | /ǝ/ |
| ما ملالۍ غولو | /له/ | ما ملالۍ وغولو | /له/ |
| ما جنډه رپو | /له/ | ما جنډه ورپو | /له / |
| ما بیرغ څرو | /ǝ/ | ما بیرغ وځړو | /ǝ/ |
| ما احمد تبنتو | /ǝ/ | مااحمد وتبنتو | /ǝ/ |
| ما احمد څغلو | /ǝ/ | ما احمد وځغلو | /ǝ/ |

ما احمد څنډو /ə/ ما احمد وڅنډو /ə/

په پورته ډول وينو چې دغه ډله فعلونه د الف ډلګي په شان مطلق شکل يې له غېر مطلق شکل (استمراري ماضي) څخه د /وwə/ مختاړي په زياتولو سره توپير کېداى شي.

## ۲-۶-۷- دويمه ډله فعلونه :

دغه ډله فعلونه چې ريښه يې په نـاتېره او تېره زمانه کې خپله ښه اړوي دغه ډله فعلونه چې په ناتېره او تېره زمانه کې خپله ښه اړوي په لاندې ډول دي او په لازمي اومتعدي وېشل کېږي.

| لازمي | متعدي | متعدي |
|---|---|---|
| ۱- الوتل | ۱-ښکښتل | ۱۲- راتلل |
| ۲- وتل | ۲نيول | ۱۳خوړل |
| ۳ختل | ۳پېژندل | ۱۴- پرانېستل |
| ۴- اوښتل | ۴موندل | ۱۵- پرېښوول |
| ۵-رغښتل | ۵- اورېدل | ۱۶-ويشتل |
| ۶نښتل | ۶-غوښتل | ۱۷- راوستل |
| ۷- کښېناستل | ۷- اغوستل | ۱۸- لوستل |
| ۸- څملاستل | ۸- پوول | ۱۹- نغښتل |
| | ۹- ښووول | ۲۰- کاږل |
| | ۱۰- ليدل | ۲۱- کتل |

دغه ډله فعلونه له لومړۍ ګنې تر اتمې ګنې پورې لازمي فعلونه دي . په دې معنى چې په تېره او ناتېره زمانه کې د جملې دفاعل له پاره تصريف کېږي.
خو ددغو فعلونو متعدي شکل چې له لومړۍ ګڼې تر ۲۱ ګڼې پورې لست شوي دي په ناتېره زمانه کې د جملې دفاعل له پاره او په تېره زمانه کې دجملې د مفعول لپاره ګردانېږي .
او د دواړو (لازمي او متعدي) فعلونو ريښه په ناتېره اوتېره زمانه کې خپلې ښې اړوي يعنى د فعل اصل (ريښه) د لومړۍ ډلې پر خلاف په تېره او نـاتېره

زمانه کې خپله بڼه اړوي. لاندې بېلګو ته پاملرنه وکړئ.

(وتل) په ناتېره زمانه کې ريښه = /وځ/

| شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه | شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|
| زه | وځ | ام /əm/ | موږ | وځ | و /u/ |
| ته | وځ | ې /e/ | تاسې | وځ | ئ /əy/ |
| دی دا | وځ | ي /i/ | دوی | وځ | ي /i/ |

(وتل) په تېره زمانه کې ريښه = /وت/

| شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه | شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|
| زه | وت | ام /əm/ | موږ | وت | و /u/ |
| ته | وت | ې /e/ | تاسې | وت | ئ /ay/ |
| دی دا | وت | ∅ /ə/ La /له/ | دوی | وت | ال /əL/ لې /Le/ |

په پورته مثالونو کې په ناتېره زمانه کې دفعل ريښه /وځ/ اوفعلي خاتمه په ترتيب سره / (ام - و- ې-ئ-ي) په بڼه ظاهرې شوې دي چې فعل د فاعل له پاره د شخص او عدد له پلوه ګردان شوی دی.

خو په تېره زمانه کې د فعل ريښه / وت/ اوفعلي خاتمې په ترتيب سره / ام -و- ې-ئ-او ∅ له -ال- لې/ په بڼه څرګندې شوې دي دادې معنی لري څرنګه چې فعل لازمي دی د لومړي اودويم شخص په مورد کې فعل د شخص او عدد له پلوه خو د دريم شخص په مورد کې د جنس له پلوه هم فعل د فاعل له پاره تصريف شوی دی.

دادی ددغې ډلې د يو بل فعل ګردان ته پاملرنه وکړئ.

(کښېناستل) په ناتېره زمانه کې دفعل ريښه = کښېن.

| شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه | شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|
| زه | کښېن | ام ∂m | موږ | کښېن | و /u/ |
| ته | کښېن | ې /e/ | تاسې | کښېن | ئ /∂y/ |
| دی دا | کښېن | ي /i/ | دوی | کښېن | ي /i/ |

(کښېناستل) په تېره زمانه کې ريښه = کښېناست.

| شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه | شخص | دفعل ريښه | فعلي خاتمه. |
|---|---|---|---|---|---|
| زه | کښېناست | ام ∂m | موږ | کښېناست | و /u/ |
| ته | کښېناست | ې /e/ | تاسې | کښېناست | ئ /∂y/ |
| دی دا | کښېناست | ∂ /∂/ له /La/ | دوی دوی | کښېناست کښېناست | ال /∂l/ لې /Le/ |

په پورته ډول وينو چې په ناتېره زمانه کې دفعل ريښه /کښېن/ او په تېره زمانه کې دفعل ريښه /کښېناست/ په بڼه څرګنده شوې ده اوفعلي خاتمې په دواړو زمانو کې د لومړي اودويم شخص په مورد کې په ترتيب سره د / ∂m ام – و - /u/ - /e/ ې او – ∂y ئ / په بڼه دي خو ددريم شخص په مورد کې په ناتېره زمانه کې يوازې په يوه بڼه (ي- /i/) څرګند شوې ده ، په تېره زمانه کې د دريم شخص په مورد کې فعلي خاتمې ∂ / - له – ال- لې/ په بڼه راغلې دي چې د عدد او جنس له پلوه د فعل سره مطابقت ښودلی دی.

ددغې ډلې د لازمي فعلونو مطلق شکل لـه غـير مطلق شکل (استمراري ماضي) څخه د / و- w∂/ د مختاړي په زياتولو سره توپير ګېداى شي.

غير مطلق (استمراري ماضي) — مطلقه ماضي

مرغی الوت –له — مرغی والوت-له

احمد وت- ∂ — احمد ووت ∂ /∂/

احمِد خوت (خت) /ə/ احمدو+ خوت /ə/

زه اوښت -ام زه و+ اوښت -ام

ددغې ډلې دوه فعلونه (کښېناستل اوځملاستل) د ځېپې د فشار په بدلون سره مطلق شکل له غير مطلق شکل توپير کېدای شي.

| غير مطلق شکل | مطلق شکل |
|---|---|
| زه ځملاست+اَم | زه ځمُلاستم |
| cə̄mla stə̄m | cōmlastəm |
| زه کښېناست+اَم | زه کښېُناست+ام |
| ksēnāstə̄m | ksēnāstəm |

په غير مطلق شکل کې فشار د کلمې په ورستۍ ځېپې /ə́m/ او په مطلق شکل کې فشار د کليمې په لومړۍ ځپه /ksē-cə̄/ باندې راغلی دېښنبه (/) فشار ښيي.

همدارنګه ددغې ډلې د متعدي فعلونو مطلق شکل له غير مطلق شکل ځخه د و / -wə /مختاړي په راوړوسره توپير کېدای شي خو يوازې پهِ دې ډله کې هم دوه فعلونه / پرانيستل - راوستل / د ځپې د خج په بدلون سره مطلق شکل له غير مطلق شکل ځخه توپير کېږي.

| غير مطلق | مطلق |
|---|---|
| ما احمد ليد /ə/ | ما احمد و+ليد /ə/ |
| تا ملالۍ ويست /له/ | تا ملالي و+ ويست/له/ |
| ده ډوډۍ خوړ /له/ | ده ډوډۍ و+خوړ /له/ |
| احمد کتاب لوست /ə/ | احمد کتاب و+لوست/ə/ |
| ما احمد کت /ə/ | ما احمد و+ کت /ə/ |

د /پرانيستل -راوستل) فعلونو مطلق شکل له غير مطلق شکل ځخه دځپې د فشار په بدلوَن سره کېږي. لکه

| غيرمطلق | مطلق |
|---|---|
| ما ور پرانيست- /ə́/ pranistə́ | ما ور پراَنيست prǽnist |
| ما احمد راوست- /ə́/ ráwastə́- | ما احمد راَوست ráwəst |

په پورته ډول وینو چې ددغو دوو فعلونو مطلق شکل له غیر مطلق شکل څخه د څېړې د خج په بدلون سره توپیر کېدای شي.
دا دی ددغې ډلې د متعدي فعلونو ګردان تـه پـه ناتېره او تېره زمانـه کـې پاملرنه وکړئ.

(لوستل) په ناتېره زمانه کې ریښه =/لول/.

| فاعل | مفعول | دفعل ریښه | فعلي خاتمه | فاعل | مفعول | دفعل ریښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| زه | کتاب | لول | ام əm | موږ | کتاب | لول | و /u/ |
| ته | کتاب | لول | ې /e/ | تاسې | کتاب | لول | ئ /əy/ |
| دی‌دا | کتاب | لول | ي /i/ | دوی | کتاب | لول | ي /i/ |

( لوستل) په تېره زمانه کې ریښه = لوست.

| فاعل | مفعول | دفعل ریښه | فعلي خاتمه | فاعل | مفعول | دفعل ریښه | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ما | کتاب | لوست | /ə/ | موږ | کتابونه | لوست | ال /əl/ |
| تا | کتاب | لوست | /ə/ | تاسی | کتابونه | لوست | /əl/ ال |
| ده | کتاب | لوست | /ə/ | دوي (مذکر) | کتابونه | لوست | ال /əl/ |
| دې | کتاب | لوست | /ə/ | دوی (مونث) | کتابونه | لوست | لې [illegible] |

• په پورته ډول وینو چې د /لوستل/ ریښه په ناتېره زمانه کې د /لول/ په بڼه او په تېره زمانه کې د /لوست/ په بڼه څرګنده شوې ده څرنګه چې فعل متعدي دی په ناتېره زمانه کې دجملې د فاعل له پاره تصریف شوی دی چې فعلي خاتمې یې په ترتیب سره د /ام -و-ې-ئ-ي/ په بـڼه راغلې دي چې د ناتېرې زمانې صرفي روستاړي دي خو په تېره زمانه کې فعل د مفعول له پاره تصریف شوی دی.

(آغوستل) په ناتېره زمانه کې د فعل ريښه-آغوند.

| فعلي خاتمه | دفعل ريښه | مفعول | فاعل | فعلي خاتمه | دفعل ريښه | مفعول | فاعل |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| و /u/ | آغوند | کميسونه | موږ | ام ∂m | آغوند | کميس | زه |
| ئ /∂y/ | آغوند | لمنې | تاسې | ې /e/ | آغوند | کميس | ته |
| ي /i/ | آغوند | لمنې | دوی | ي /i/ | اغوند | کميس | دی دا |

(آغوستل) په تېره زمانه کې د فعل ريښه = اغوست.

| فعلي خاتمه | دفعل ريښه | مفعول | فاعل | فعلي خاتمه | دفعل ريښه | مفعول | فاعل |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ال /∂l/ | آغوست | کميسونه | موږ | /∂/ | آغوست | کميس | ما |
| لې /le/ | آغوست | لمنې | تاسې | له /La/ | آغوست | لمنه | تا |
| ال /∂l/ | آغوست | کميسونه | دوی | /∂/∂/ له /La/ | آغوست آغوست | کميس لمنه | ده دې |

په پورته ډول وينو چې فعل په ناتېره زمانه د فاعل له پاره تصريف شوی دی. دفعل ريښه په دغه زمانه کې د /اغوند/ په بڼه اوفعلي خاتمې په ترتيب سره د /ام - و - ې- ئ- ي/ په بڼه څرګندې شوې دي . خو په تېر مهال کې د فعل ريښه د /اغوست/ په بڼه څرنګه چې فعل متعدي دی د جملې د مفعول لپاره تصريف شوی دی او فعلي خاتمې يې د / ∂ - له- ال - لې/ په بڼه راغلې

دي . او وينو چې ددغې ډلې فعلونو ريښه په تېره او نا تېره زمانه کې تو پير لري.

زده کوونکوته دکار د اسانتيا لـه پاره ددغې ډلې فعلونو ريښې په ناتېره او تېره زمانه کې وړاندې کېږي.

| | ناتېره زمانه ريښه | تېره زمانه ريښه |
|---|---|---|
| (آلوتل) | الوز (ځ) | الوت |
| (اوښتل) | اوړ | اوښت |
| (سکښتل) | سکڼ | سکښت |
| (وژل) | وژن | وژ |
| (نيول) | نيس | نيو |
| (پېژندل) | پېژن | پېژند |
| (موندل) | موم | موند |
| (نښتل) | نښل | نښت |
| (آغوستل) | آغوند | آغوست |
| (راوستل) | راول | راوست |
| (ويشتل) | ول | ويشت |
| (خوړل) | خوړ(ر) | خوړ |
| (ويستل) | باس | ويست |
| (رابلل) | رابول | رابال |
| (ليدل) | وين | ليد |

## ۳-۶-۷ - دريمه ډله فعلونه :

دغه فعلونه په درې ډلو وېشل کېږي.

۱- هغه ډله ترکيبي فعلونه چې يو توک يې نوم يا ستاينوم او دويمه برخه يې د /يدل- کېدل/ مرستيال فعل له يو ځاى کولو څخه جوړ شوى دى يا په بل عبارت له يوه لغوي عنصر او کومکي فعل له يو ځاى کېدو څخه منځ ته راغلى وي.

د کار دآسانتيا له پاره ددغو فعلونو بشپړ لست وړاندې کېږي.

| | | |
|---|---|---|
| خښېدل (کېدل) | سپېندل | خبرېدل |
| خوږېدل رر | سرېدل | لېږېدل |
| خپلېدل رر | کږېدل | ډېرېدل |
| څېرېدل رر | جوړېدل | پټېدل |
| ټولېدل رر | جګېدل | توېېدل |
| روانېدل رر | ماتېدل | تيارېدل |
| سپکېدل رر | نيمېدل | تاوېدل |
| روښانېدل رر | ودانېدل | تنګېدل |
| زياتېدل رر | ورانېدل | خرابېدل |
| ړندېدل رر | يادېدل | کوزېدل |
| ژوبلېدل رر | پخېدل | غوړېدل |
| ويښېدل رر | تورېدل | ژېړېدل |
| وچېدل رر | پراخېدل | پوهېدل |
| تښتېدل رر | ډکېدل | ارزانېدل |
| پاکېدل رر | بېلېدل | بدلېدل |
| بندېدل رر | بلېدل | پارېدل |
| اوږدېدل رر | چاپېدل | اوچتېدل |

دغه ډله فعلونه د مجهولو فعلونو په نامه يادېږي او دهغه تصريفي جوړښت له کبله په دوو برخو وېشل کېږي.

د الف ډلګۍ : هغه ډله ترکيبي فعلونه چې لومړی توک يې (نوم يا ستاينوم) –

په بېواك (کانسوننت) پای شوي وي د فعل د دويم عنصر (کمکی فعل) لومړی بېواك غږ په معياري ډول دفعل له اصل څخه لوېږي او په تېره زمانه کې پرته له استمراري ماضي څخه. فعلي ماده يې د /شول/ په بڼه څرګندېږي.

| مسنداليه | دفعل اصل | فعلي خاتمه | |
|---|---|---|---|
| ورځپاڼه | خپرېږ | ي | /i/ |
| مړی | خنبېږ | ي | /i/ |
| اوبه | روانېږ | ي | /i/ |
| کار | سمېږ | ي | /i/ |
| مسنداليه | دفعل ريښه | فعلي خاتمه | |
| کار | سپکېږ | ي | /i/ |
| ښه | خوږېږ | ي | /i/ |

په پورته ډول وينو چې ددغې ډلې فعلونو له اصل څخه د فعلي مادې (کومکي) لومړی بېواك غږ /ك/ په معياري ډول لوېدلی دی يعنې زموږ په ورځنۍ محاوره کې همدا ډول دود لري او فعلي خاتمې يې دجملې د مسنداليه لپاره يوازې د شخص له پلوه سمون ښودلی دی.

له بله پلوه که چېرې دفعل له اصل څخه (کومکي فعل) لومړی بېواك غږ په معياري ډول نه غورځول شي هلته بيا د ترکيبي فعل لومړی عنصر (نوم يا ستاينوم دجملې له مبداء (منداليه) سره د ښځينه (مفرد اوجمع) اونارينه (مفرد او جمع) له پلوه بشپړ مطابقت ښيي. لکه

| مسنداليه | د ترکيبي فعل لومړی عنصر (نوم ياستاينوم) | مرستيال فعل فعلي خاتمه |
|---|---|---|
| ورځپانه | خپره | کېږ - ي |
| ورځپاڼې | خپرې | کېږ - ي |
| خبر | خپور | کېږ - ي |
| خبرونه | خپاره /ə/ | کېږ - ي |
| ملالۍ | ړنده /a/ | کېږ - ي |
| ملالۍ او تور پيکۍ | ړندې /e/ | کېږ - ي |
| احمد | ړوند | کېږ - ي |
| احمد اومحمود | ړانده | کېږ - ي |

له پورتنيو څرګندونو څخه دا نتيجه لاس ته راځي : که چېرې د کومکي فعل له اصل څخه /ك/ په معياري ډول و غورځول شي هلته بيا د ترکيبي فعل لومړی عنصر (نوم ستاينوم) دجملې له مبتداء ( مسنداليه) لپاره د عدد اوجنس له پلوه سمون ښيي . او که چېرې د ترکيبي فعل له اصل څخه ( کومکي ) /ك/ ونه غورځول شي نو هلته بيا د ترکيبي فعل دواړه توکونه د جملې د مسنداليه له پاره په يوه بڼه اوړون مومي.

اوس راځو او ګورو چې ددغې ډلې ترکيبي فعلونو تصريف په تېره زمانه کې څه ځانګړتياوې لري.

په تېره زمانه کې پرته له استمراي ماضي څخه ددغې ډلې فعلونو دويم عنصر (فعلي ماده ) د (شول) مرستيال فعل په راوړوسره په لاندې توګه ګردانېږي.

| مطلقه ماضي | استمراري ماضي |
|---|---|
| ورځپاڼه خپره شوه | ورځپاڼه خپرېده /خپره – کېدله/ |
| ورځپاڼې خپرې شوې | ورځپاڼې خپرېدې /خپرې کېدلې/ |
| کتاب خپور شو | کتاب خپرېده /خپور کېده/ |
| کتابونه خپاره /ə/ شول | کتابونه خپرېدل /خپاره /ə/ کېدل/ |

په پورته ډول وينو چې په مطلقه ماضي کې دفعل دواړه برخې (لغوي عنصر او مرستيال فعل) د جملې د مسنداليه سره په بشپړه توګه سمون ښودلی دی. خو په اسمترلري ماضي کې د فعل دويم توک (فعلي ماده) د /کېد- يد/ په بڼه راځي که چېرې د فعل له اصل څخه / ک/ ونه غورځول شي نو دفعل دويم توک په منظمه توګه د جملې له مسنداليه سره مطابقت ښيي او که چېرې / ک/ په اختياري ډول وغورځول شي نوهلته بيا د فعل دواړه برخې د جملې د مسنداليه سره د جنس اوعدد لـه پلوه بشپړ سمون ښيي.د / ب / ډلګی ./هغه ډله ترکيبي فعلونه چې د ترکيبي فعل لومړی توک ( لغوي عنصر) په واول ختم شوی وي په ناتېره زمانه کې د فعلي مادې ( کومکي فعل) لومړی بېواك غږ د فعل له اصل څخه هيڅکله نه لوېږي.

د کار داسانتيا لـه پاره ددغې ډلې فعلونو لست په لاندې ډول وړانـدې کېږي.

| | |
|---|---|
| پخلا کېدل | ساهوکېدل |
| لاهوکېدل | هوساکېدل |
| بوميا کېدل | ښايسته کېدل |
| پياده کېدل | شاته کېدل |
| ساده کېدل | خپه کېدل |

د مطلب دښه وضاحت لپاره د دغو فعلونو څخه د څو فعلونو ګردان تـه پاملرنه وکړئ.

پخلا کېدل ناتېره زمانه

زه پخلا کېږ+ ام /əm/
ته پخلا کېږ+ ې /e/
دی پخلا کېږ + ي /i/
دا پخلا کېږ+ ي /i/

موږ پخلا کېږ+ و /u/
تاسي پخلا کېږ+ئ /əy/
دوی پخلا کېږ+ ي /i/
دوی پخلا کېږ+ ي /i/

خپه کېدل

زه خپه کېږ+ ام
ته خپه کېږ+ې
دی خپه کېږ+ ي
دا خپه کېږ+ي

موږ خپه کېږ+و
تاسي خپه کېږ+ئ
دوی خپه کېږ+ي
دوی خپه کېږ+ ي

نو په دې ډول وينو چې دغه ډله فعلونه د خپل مورفـالوژيکي جوړښت له پلوه د فعل لومړی عنصر د جملې د مسنداليه سره هيڅ ډول سمون نه ښيي خو دويم توك ( فعلي ماده ) يې د جملې له مسنداليه سره د شخص او عدد له پلوه مطابقت ښيي.

اوس ګورو چې ددغـې ډلـې فعلونـو اوړون (صـرف) پـه تېرمـهال کـې څه ځانګړتياوې لري. دغه ډله فعلونه په تېره زمانه کې (پرته له استمراري ماضي) د /شول/ کومکي فعل په يو ځای کولو سره رغېدنه مومي او په منظمـه توګه د جملې له مسنداليه سره د شخص ، عدد او جنس له پلوه مطـابقت ښيي. البتـه په استمراري مـاضي کې د فعـل دويـم توك ( کومکـي فعـل ) د /کېد/ پـه بڼـه ګردانېږي.

کومکي فعل شول

مطلقه ماضي

١- زه پخلا شوم-ام
٢- ته پخلا شوې- ې
٣- دی پخلا شو ∅
دا پخلا شو - له

موږ پخلا شو-و
تاسي پخلا شو-ئ
دوی پخلا شو –.ال
دوی پخلا شو –لې

کومکي فعل = کېدل

اسمتمراري ماضي

زه پخلا کېد-ام
موږ پخلا –کېد-و

| | |
|---|---|
| ته پخلا کېد-ې | تاسې پخلا کېد-ئ |
| دی پخلا کېد- /ۀ/ | دوی پخلا کېد-ال |
| دا پخلا کېد /له/ | دوی پخلا کېد-لې |

په پورته ډول وينو چې د فعل دويم عنصر (کومکي فعل) دلومړي او دريم شخص په مورد کې د شخص او عدد له پلوه خو ددريم شخص په مورد کې د جنس له پلوه هم دجملې د مسندالیه سره مطابقت ښودلی دی.

۲- هغه ډله ترکيبي فعلونه چې يو توك نوم يا ستاينوم او بل توك يې د /كول/ كومكي فعل په يو ځاى كولو سره رغېد نه مونډلې ده.

دغه ډله فعلونه له نحوي پلوه د متعدي فعلونو ډله کې راځي او په تېره زمانه کې د فعل دويم عنصر (کومکي فعل) د /کړل/ په بڼه ګردانېږي. دغه ډله فعلونه په لاندې ډول دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| کړول | خپرول | ډېرول | تودول |
| سړول | خپلول | لړول | ځايول |
| سپينول | خوړول | پخول | چاپول |
| ژوبلول | ښخول | يادول | اسانول |
| ړندول | بېلول | ورانول | اوارول |
| اوچتول | زياتول | پاکول | ښيمول |
| روښانول | ارزانول | ماتول | اوږدول |
| رنګول | ډکول | جګول | بارول |
| سمول | تښتول | جوړول | بلول |
| سپکول | پوهول | دمول | بوږنول |
| روانول | پراخول | خرابول | تورول |
| تېلول | پټول | تاوانول | ويښول |
| تويول | تيارول | تنګول | تاوول |

دغه ډله ترکيبي فعلونه هم په دوو ډولونو ليشل کېږي.

**الف ډلګی:** دا هغه ډله ترکيبي فعلونه دي چې د ترکيبي فعل لومړی عنصر (لغوي) / نوم يا ستاينوم/ په بې واك غږ پای شوی وي. په ناتېره زمانه کې دفعل لومړی کانسوننت غږ / ك/ د فعل له اصل څخه په معياري ډول لوېږي او په تېره زمانه کې پرته له استمراري ماضي څخه فعلي ماده يې د / کړ/ په بڼه ګردانېږي.

دغه ډله فعلونه په نحوي لحاظ دمتعدي فعلونو په ډله کې راځي يعنې په تېره زمانه کې د جملې د مفعول له پاره تصريف کېږي.

لاندې بېلګو ته پاملرنه وکړئ.

ناتېره زمانه

| دفعل رېښه (اصل) | | | فعلي خاتمه | | دفعل اصل فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|---|
| زه ورځپانه | خپرو | ام | موږ ورځپانه خپرو | ـ | و |
| ته روځپانه | خپرو | ې | تاسې ورځپانه خپرو | ـ | ئ |
| دی ورځپانه | خپرو | ي | دوی ورځپانه خپرو | ـ | ي |
| دا ورځپانه | خپرو | ي | دا ورځپانه خپرو | ـ | ي |

اوس ګورو چې په تېره زمانه دغه فعل څه ځانګړتياوې لري.

تېره زمانه

| دفعل اصل فعلي خاتمه | | | دفعل اصل | فعلي خاتمه |
|---|---|---|---|---|
| ما ورځپانه | خپره کړ | /له/ | موږ مجله خپره کړ | له |
| تا کتاب | خپور کړ | [illegible] | تاسې کتابونه خپاره کړ | ال |
| ده کتابونه | خپاره کړ | ال | دوی مجلې خپرې کړ | لې |
| دی ورځپانې | خپرې کړ | لې | دوی مجله خپره کړ | له |

په پورته ډول وينو چې د ترکيبي فعل دواړه برخې ( لغوي عنصر) او ( کومکي فعل) په منظمه توګه د جملې د مفعول له پاره د جنس او عدد له پلوه تصريف شوي دي لکه چې مخکې وويل شول په استمراري ماضي کې د فعل اصل دناتېرې زمانې د اصل په شان ګردانېږي.

استمراري ماضي

| | | |
|---|---|---|
| ما ورځپانه | خپرو | له/ |
| تا کتاب | خپرو | /ə/ |
| ده ورځپانې | خپرو | لې |
| دې کتابونه | خپرو | ال/ |

په پورته ډول وينو چې د ترکيبي فعل دواړه برخې (لغوي عنصر) او ( کومکي فعل) په منظمه توګه د جملې د مفعول له پاره د جنس او عدد له پلوه تصريف شوي دي لکه چې مخکې وويل شول په استمراري ماضي کې دفعل اصل دناتېرې زمانې د اصل په شان ګردانېږي.

استمراري ماضي

| | | |
|---|---|---|
| ما ورځپانه | خپرو | /له/ |
| تا کتاب | خپرو | /ə/ |
| ده ورځپانې | خپرو | /لې/ |
| دې کتابونه | خپرو | /ال/ |

په پورته ډول وينو چې د فعل اصل د /خپرو/ په بڼه لکه د ناتېرې زمانې په شان دی.

**د ب ډلګې**: هغه ډله ترکيبي فعلونه چې د فعل لغوي عنصر په خپلواک غږ پای شوي وي. په ناتېره زمانه کې دفعلي مادې (کومکي فعل ) لومړی غږ د فعل له اصل څخه هيڅکله نه لوېږي. دغه فعلونه په لاندې ډول دي.

| | |
|---|---|
| پخلاکول | هوساکول |
| لاهو کول | بومیاکول |
| ښایسته کول | خپه کول |
| شاته کول | |

دادی د مطلب دښه څرګند تیاله پاره ددغې ډلې فعلونو د یو فعل ګردان ته پاملرنه وکړئ.

| | دفعل اصل | فعلي خاتمه |
|---|---|---|
| زه احمد | پخلاکو | ام /əm/ |
| ته احمد | پخلاکو | ې /e/ |
| دی احمد | پخلا کو | ي /i/ |
| موږ احمد | پخلاکو | و /u/ |
| تاسې احمد | پخلاکو | ئ /əy/ |
| دوی احمد | پخلا کو | ي /i/ |

په پورته ډول وینو چې فعل شخص او عددله پلوه دفاعل له پاره تصریف شوی دی.

او س راځو په تېره زمانه کې ددغې ډلې فعلونو ګردان ته.

په تېره زمانه کې دفعل لغوي عنصر دمفعول له پاره په یو شان ګردانېږي خو د فعل دویم عنصر (کومکي فعل) پرته له استمراري ماضي څخه د /کړ/ په شکل ګردانېږي.

| | تېره زمانه | |
|---|---|---|
| ما احمد | پخلا کړ | θ |
| تا ملالۍ | پخلا کړ | /اله/ |
| ده احمد او محمود | پخلا کړ | /ال/ |
| دې احمداو محمود | پخلا کړ | /ال/ |
| موږ ملالۍ اوتورپېکۍ | پخلا کړ | /الې/ |
| تاسې احمد او محمود | پخلا کړ | /ال/ |

| | | |
|---|---|---|
| دوی ملالۍ | پخلا کړ | /له/ |
| دوی احمد | پخلا کړ | $\theta$ |

## استمراري ماضي

| | | |
|---|---|---|
| ما احمد | پخلا کو | /٥/ |
| تا ملالۍ | پخلا کو | /له/ |
| موږ احمد او محمد | پخلا کو | /ال/ |
| تاسې ملالۍ او تورپېکۍ | پخلا کو | /لې/ |
| دوی احمد او محمود | پخلا کو | /ال/ |

په پورته ډول وینو چې په استمراري ماضي کې دفعل دویم عنصر (کومکي فعل) د /کو/ په بڼه او د تېر مهال په نورو زمانوکې د /کړ/ په بڼه څرګند شوی دی. او په منظمه توګه د جنس او عدد له پلوه د جملې د مفعول له پاره تصریف شوی دی.

۳- هغه ډله ترکیبي فعلونه چې د فعل لومړی عنصر یو اصلي فعل او دویم یې یو کومکي فعل /کېدل/ څخه رغېدنه موندلې وي. د کار داسانتیا له پاره ددغو فعلونو لست وړاندې کېږي او پاتې دې نه وي چې دغه فعلونه دمجهولو فعلونو په ډلو کې راځي.

| | | |
|---|---|---|
| تړل کېدل | څېړل کېدل | روزل کېدل |
| پلټل کېدل | رټل کېدل | تورل کېدل |
| لیکل کېدل | زېښل کېدل | شیندل کېدل |
| وژل کېدل | پرانیستل کېدل | غندل کېدل |
| پلورل کېدل | ژغورل کېدل | لوستل کېدل |
| پالل کېدل | سپارل کېدل | اغوستل کېدل |
| لېږل کېدل | شړل کېدل | غوښتل کېدل |
| ښښل کېدل | کرل کېدل | ټومبل کېدل |

| | | |
|---|---|---|
| مینځل کېدل | تاکل کېدل | وهل کېدل |
| څښل کېدل | وړل کېدل | موندل کېدل |
| څټل کېدل | لوشل کېدل | اېېل کېدل |

دا دي د مطلب دښه څرګندتیا له پاره ددغې ډلې فعلونو ګردان تـه پـه ناتېره او تېره زمانه کې پاملرنه وکړئ.

نا تېره زمانه

| | | |
|---|---|---|
| زه (مفرد مونث) | تړله کېږ/ام / | ∂m |
| زه (مفرد مذکر) | تړل کېږ –/ام | ∂m |
| موږ (جمع مذکر) | تړل کېږ/و / | / u/ |
| موږ ( جمع مونث) | تړلې کېږ –/و / | / u/ |
| ته ( مفرد مونث) | تړله کېږ /ې / | /e/ |
| ته ( مفرد مذکر) | تړل کېږ/ې / . | /e / |
| تاسې (جمع مونث) | تړل کېږ /ئ/ | ∂y |
| تاسې (جمع مذکر) | تړل کېږ/ئ / | ∂y |
| دی ( مذکر مفرد ) | تړل کېږ –ي | /i/ |
| دا ( مفرد مونث) | تړل کېږ-ي / | /i/ |
| دوی ( جمع مونث ) | تړله کېږ-ي / | i./ |
| دوي ( جمع مذکر ) | تړل کېږي | / i// |

په پورتـه ډول وینو چې په ناتېره زمانـه کې دفعـل لومړی برخې /تـړل/ د جنس او عدد له پلوه د فـاعل لـه پاره تصریف شوې دي په دې ډول هلتـه چې مسندالیه مفرّد مونث دی د / تړله/ په بڼه دجمع مونث لـه پاره د / تړلې/ خو د مفرد مذکر او جمع مذکر له پاره په یوه بڼه /تړل/ ګردان شوی دی ، همدا رنګه کومکي فعل د / کېږ/ په شکل او د ټولو لپـاره په یو شان ګردان شوی دی او فعلي خاتمې د مسندالیه سره سمون لري.

اوس راځو په تېره زمانه کې ددغې ډلې فعلونو ګردان ته.

په تېره زمانه کې پرته له استمراري ماضي څخه د / شول/ کومکي فعل پـه

ملتیا ګردانېږي. او د ناتېرې زمانې پر خلاف د فعل دواړه برخې د جنس او عدد له پلوه د جملې د مسند الیه سره مطابقت ښیي خو د ترکیبي فعل لومړی عنصر د مفرد مذکر او جمع مذکر لپاره یو شان ګردانېږي.

تېره زمانه

| | | |
|---|---|---|
| زه (مفرد مونث) | وتړله شو | -ام |
| زه ( مفرد مذکر) | وتړل شو | -ام |
| موږ ( جمع مذکر) | وتړل شو | و |
| تاسې (جمع مونث) | وتړلې شو | -ئ |
| دوی ( جمع مذکر) | وتړل شو | -ل |
| دوی ( جمع مونث) | وتړلې شو | -ې |
| دی ( مفرد مذکر) | وتړل شو∅( فعلي خاتمه صفر) | |
| دا (مفرد مونث) | وتړله شوه | /a/ |

په پورته ډول وینو چې د فعل لومړی عنصر / تړل/ دمفرد مونث او جمع مونث له پاره د تړ/له/ او /تړلې/ په بڼه او د مفرد او جمع مذکر لپاره په یو شان ګردان شوی دی.

پاتې دې نه وي چې په استمراري ماضي کې /کومکي فعل / د / کېد/ په بڼه ګردانېږي لکه :

استمراري :

| | | |
|---|---|---|
| زه (مفرد مونث) | تړله کېد+ام | /ðm/ |
| زه (مفرد مذکر) | تړل کېد+ام | /ðm/ |
| ته (مفرد مونث) | تړله کېد+ې | /e/ |
| ته ( مفرد مذکر) | تړل کېد+ې | /e/ |
| موږ ( جمع مذکر ) | تړل کېد+ و | /u/ |
| موږ ( جمع مونث) | تړلې کېد+ و | /u/ |
| تاسې (جمع مذکر) | تړل کېد+ئ | /ðy/ |
| تاسې (جمع مونث) | تړلې کېد+ ئ | /ðy/ |

دی (مفرد مذکر) ترل کېد /ə/ /ə/ /ə/
دا (مفرد مونث) ترله کېد /a/ /a/ /a/
دوی (جمع مونث) ترلې کېدې اې/ /e/ /
دوی ( جمع مذکر) ترل + ال /əl/

په پورته ډول وینو چې په استمراري ماضي کې د ترکیبي فعل لومړی عنصر د جنس او عدد له پلوه د مُنْدالیه له پاره تصریف شوي دي . د مفرد مونث او جمع مونث لپاره / له – لې/ په بڼه د مفرد مذکر او جمع مذکر لپاره د /ل/ په بڼه یعني په یو شان ګردان شوي دی او د فعل دویم عنصر د ټولو له پاره په یو شان راغلی دی.

## ۷-۷- دفعل زمانه:

یو فعل د مهال (زمان ) له پلوه په درې ډوله دی یا په بل عبارت د یوې پېښې پېښېدل او یا د یو حالت واقع کېدل په درو زمانو پورې اړه لري.

**تېر مهال** : د ونیا یا د یو فعل د پېښېدو څخه پخوا زمانه.

**ناتېرمهال** : (حال) دوینا یا د یو فعل د پېښېدو زمانه.

**مستقبل مهال**: دوینا او د پېښې د پېښېدو وروسته مهال.[۱]

**۷-۸- ماضي فعل**: او د هغه ډولونه : ماضي فعل هغه فعل ته وایي چې د یو کار د کېدو او یا د یوې پېښې د پېښېدو څخه په تېر مهال کې بیان کوي . او په لاندې ډولو وېشل کېږي .

**۱-۸-۷- مطلقه ماضي**: په پښتو ژبه کې د مطلقې ماضي رغېدنه د فعل د دویمې ریښې څخه په دوو ډولو تر سره کېږي.

الف د / و – wə / دمختاړي په زیاتولو سره لکه :

مـا و+ اغوست /ə/ ماو- خوړ /ə/ ما ولوست /ə/

---

(۱) محمد حسین یمین ، دستور زبان دري کابل : پوهنتون کابل. انتشارات پوهنتون کابل ۱۳۶۵ ص ۱۲۰ .

| | | |
|---|---|---|
| تا و ـ اغوست /ə/ | تاوخوړ /ə/ | ماوليك /ə/ |
| ده و اغوست /ə/ | ده و - خوړ /ə/ | تاو لوست /ə/ |
| دې و- اغوست /ə/ | دی وخوړ /ə/ | ده وليك /ə/ |

ب : د څپې د خج په بدلون:

زه څملاستم əmlástəm

زه پرېوتم préwatəm

زه کښېناستم ksénāsəm

په پورته مثالونو کې که څېرې فشار دفعل په لومړۍ څپه باندې cə́m

pré ksé راشي نو مطلقه ماضي ترې جوړېږي.

## ۲-۸-۷- استمراري ماضي:

چې د يو کار د کېدو او يا د يوې پېښې د پېښېدو استمرار او دوام په تېر مهال کې بيانوي . په پښتو ژبه کې د استمراري ماضي جوړښت د تېر مهال فعل له ريښې څخه په لاندې ډول تر سره کېږي.

الف : د څپې د خج په بدلون : څرنګه چې د مطلقې ماضي په رغېدنه کې وليدل شول که څېرې دفعل په لومړۍ څپه فشار يا خج راوړل شي مطلقه ماضي ترې جوړېږي او که څېرې خج دفعل وروستۍ څپې ته انتقال شي نو استمراري ماضي فعل ترې جوړېږي.

زه څملاستم cəmlāstə́m

زه پرېوتم prewatə́m

زه کښېوتم ksewatə́m

زه کښېناستم ksenāstə́m

څرنګه چې د مطلقې ماضي په رغېدنه کې مو وليدل چې مطلقه ماضي په متعدي فعلونو کې د / و- wə/ د مختاړي په زياتولو سره رغېدنه مومي خو په استمراري ماضي کې د / و- wə/ مختاړي په لرې کولو سره جوړېږي يعنې د مطلقې ماضي / wə / مختاړی چې د فعل د سر څخه وغورځول شي استمراري ماضي جوړېږي. لکه :

ما کمیس اغوسته /ə/

تا ډوډۍ خوړه /ə/

ده لیك لیك /ə/

یادونه: په ځینو لازمي فعلونو کې هم د /wə/ د مختاړي په زیاتولو سره مطلقه ماضي جوړېږي لکه زه ولاړم ، زه و + وتم ، ته و +وتې .

خو په ځینو فعلونو کې لکه تلل د فعل داصل په بدلون سره استمراري ماضي جوړېږي. لکه : زه تلم - ته تلې - دی ته - داتله.

## ۳-۸-۷- نږدې ماضي:

نږدې ماضي د چار او پېښنګ له مخې کله داسې وي چې په تېر مهال کې یو مخیز بشپړ شوې وي او یا دا چې تر اوسمهال یې څه اوږدوالی موندلی وي[1]

دهغه د جوړولو طریقه په لاندې ډول ده.

مفعولي صفت + (یم ،یو ، دی ، یئ) مرستیال فعل .

زه تللی یم ، ته تللی یې، موږ تللي یو ، تاسې تللي یئ ، دی تللی دی ، داتللې ده ، دوی تللي دي ، مالیکلي دي ، ما لیکلې ده .

## ۴-۸-۷- لرې ماضي

: بعید ماضي ته هغه وخت ضرورت پرېوځي چې وروسته ترې بشپړ تېر مهال ( مطلقه ماضي ) یاد قریبې ماضي فعل واقع شوی وي.

یا په بل عبارت بعید ه ماضي یو له دغو نورو ډولو تر استعمال وړاندې کارول کېږي. څه پر لسو بجو راغلې او زه پر نهو بجو راغلی وم ، یا هغه وخت چې ته راغلې زه راغلی وم . کله چې زه راغلم ملګري تللي وو.

د بعیدې ماضي فعل ګردان او رغېدنه په لاندې ډول ده ( مفعولي صفت + د / ول/ مرستیال فعل ) لکه :

---

(۱) مجاور احمد زیار : پښتو پښویه : کابل د لوړو زده کړو چاپخونه ، ۱۳۶۲ ، ۱۳۸ مخ

ما خوړلې وه
تا خوړلې وه
تا ليکلې و
مور ليکلي وو
دوی تللي وو
تاسې تللي وئ

دبعيد ې ماضي مجهول شکل په لاندې ډول درغبږدنه مومي.
(اصلي فعل+ شول+ ول)

زه خوړلی شوی وم
ته وهل شوی وې
تاسې رټل شوي وئ
خط ليکل شوی و، خطونه ليکل شوي وو.

## ۵-۸-۷- احتمالي يا التزامي ماضي:

هغه فعل ته وايي چې د هغه پيښېدل ګوماني اومشکوک وي يا په بل عبارت په تېره زمانه کې د يو کار پيښېدل په شك يا احتمال بيانوي.

په لاندې ډول جوړښت مومي (معفولي صفت+ به + ول) او هم د ګوندي او ښائي غوندې ګوماني ادات هم ورسره ملتيا مومي. لکه: ما به خوړلی وی - تا به ليکلی وی - دی به تللي وی. ښايي ما به خوړلی وی. ښايي ما به ليکلي وی ښايي ده به ليدلی وی.

**۹-۷- حال فعل**: د معنی له پلوه د يو عمل واقع کېدل دی په اوسمهال کې حال فعل داوسمهال له اصل څخه جوړېږي. اوفاعلي روستاړي دفعل په ريښه پورې نښلي.

زه لول ام /əm/
زه خور ام /əm/
زه کښېن ام /əm/
زه وه ام /əm/

| | | | |
|---|---|---|---|
| ته | کښېن | ې | /e/ |
| ته | وه | ې | /e/ |
| ته | لول | ې | /e/ |
| ته | خور | ې | /e/ |
| موږ | لول | و | /u/ |
| موږ | خور | و | /u/ |
| موږ | کښېن | و | /u/ |
| موږ | وه | و | /u/ |
| تاسې | لول | ئ | /əy/ |
| تاسې | خور | ئ | /əy/ |
| تاسې | کښېن | ئ | /əy/ |
| تاسې | وه | ئ | /əy/ |
| دوی | لول | ي | /i/ |
| دوی | خور | ي | /i/ |
| دی | کښېن | ي | /i/ |

**۱۰-۷- مستقبل فعل** : چې د یو کار کېدل په راتلونکې زمانه کې ښرگندوي. فعل د اصل له پلوه د اوسمهال سره کوم توپیر نلري. او په پښتو گرامرونوکې دغه دواړه (حال او مستقبل) د ناتېرې زمانې په نامه هم نومول شوي دي خود /ب/ اَدات په زیاتولو سره له اوسمهال سره توپیر کېدای شي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| زه | به | وخور | م |
| ته | به | وخور | ې |
| دی | به | ولیک | ي |
| دوی | به | ولول | ي |
| تاسې | به | واغوند | ئ |

یادونه : مستقبل فعل د اوسمهال له ریښې څخه د /ب/ په زیاتولو رغېدنه مومي. خو یوازې د / تلل/ په گړان گې د/لاړ/مطلقې ماضي د ریښې

په راوړو سره د/شول/مرستیال فعل په ملتیا گردانېږي. لکه:

زه به ولاړ شم ،ته به لاړ شې.

مستقبل فعل بشپړ اونابشپړ شکلونه لري.

بشپړ: وبه خورم ، وبه خورې ، مجهول : وبه خوړل شي، وبه وهل شي.

نابشپړ: خورم به ، خورو به ، مجهول شکل : خوړل کېږم به ، درېږم به.

## ۷-۱۱ امر فعل :

هغه فعل ته وایي چې د یو کار د سر ته رسولو خواهش وکړي اویا د یو عمل اود کار دسر ته رسولو امر وکړي یا په بل عبارت دیو کار سرته رسول د استد عا او خواهش په صورت وکړي او دوه صیغې لري، مفرد اوجمع:

امر فعل د حال له ریښې څخه رغېدنه مومي، د مطلق اواستمرار شکلونه لري دمفرد له پاره دفعل په ریښه پورې /a/ زیاتېږي. لکه:

وخوره /a/ ، لیکه /a/، وڅښه /a/، وتړه /a/،

خوره /a/، ولیکه /a/،څښه /a/،تړه /a/ .

د جمع له پاره د فعل په ریښه پورې د /ðy/ روستاړی زیاتېږي . لکه :

وخورئ /ðy/ - وخورئ /ðy/ - ولیکئ /ðy/ - ودرېږئ /ðy/ -

خورئ /ðy/- خورئ /ðy/- لیکئ /ðy/- درېږئ /ðy/

الف مطلق شکل: دفعل په سر کې د /و - wə/ مختاړی زیاتېږي لکه :

ولیکه /a/ ولیکئ /ðy/ وخوره /ð/ وخورئ ðy ولوله a ولولئ ðy

ب استمراري شکل: دفعل په سر کې د /و - wə/ مختاړی په غورځولو سره رغېدنه مومي. لکه: خوره /a/ خورئ /ðy/ لیکه /a/ لیکئ /ðy/

په استمراري شکل کې وروستی څپه اوږده تلفظ کېږي.

یادونه: د/ تلل/ فعل دا مرصیغه د فعل ددویمې ریښې ( مطلقې ماضي ) څخه رغېدنه مومي . لاړ شه /a/ لاړ شئ ðy یا د کندهار په لهجه کې ولاړ شه /a/ ولاړ شئ /ðy/

## ۱۲-۷- د مضوعاتو لنډیز او پوښتنې :

۱ فعل په یوه زمانه کې دکار په کولو او یا د یوې پېښې په پېښېدو او یا د یو حالت په بیانولو دلالت کوي لکه : خورم ، خورو ، خورئ ،خوري، وخوړ ،خوړلې دی . په پښتو ژبه کې یوفعل د شخص عدد او جنس له پلوه ګردانېږي.

۲ فعل د استعمال اومعنوي افادې له پلوه بېلابېلې بڼې اوشکلونه لري لکه اخباري صورت شرطي ،مکاني ، احتمالي ، مصدري او تمنايي صورت.

۳ په پښتو ژبه کې فعل دوه صیغې لري مجهول اومعلوم ،معلوم په دې معنی چې فاعل یې معلوم وي، مجهول چې فاعل یې معلوم اوڅرګند نه وي اومفعول دمسندالیه په توګه راغلی وي.

۴ فعل د معنی له پلوه په دوه ډوله دی . لازمي او متعدي. لازمي فعل چې فعل یوازې په فاعل تمام شي او متعدي چې سربېره پر فاعل مفعول هم وغواړي ، د صرف له پلوه لازمي فعل په دواړو زمانوکې ( په تېره اوناتېره ) دفاعل سره سمون ښيي .متعدي فعل په تېر مهال کې د جملې دمفعول له پاره تصریف کېږي.

۵ په پښتو ژبه کې لکه دري غوندې په عمومي توګه فعلونه دوه ریښې (اصل) لري یوه دتېرې اوبله دناتېرې زمانې.

۶ په پښتو ژبه کې فعلونه دمور فولوژیکي جوړښت له پلوه په درې ډلو وېشل کېږي.

لومړی: هغه ډله فعلونه چې په تېره او ناتېره زمانه کې فعل خپل اصل نه بدلوي لکه تړل.

ګنډل ، ساتل، شمېرل، لیکل ، وهل .

دویمه ډله : دا ډله فعلونه په تېره اوناتېره زمانه کې خپل اصل بدلوي د لازمي اومتعدي دواړه شکلونه لري لکه الوتل ( الوځ- الوت) ختل ، خېژ، خت/ اوښتل ( اوړ- اوښت) .

متعدي_ نیول ( نیس_ نیو) خوړل ( خور- خوړ) وېشل ( ول- ویشت)

دریمه ډله: چې یو توك یې نوم یا ستا ینوم اوبل توك یې مرستیال فعل ( کېدل- کول – شول) څخه رغېدنه موندلی وي لکه سپینېدل ( سپین کېدل) توربدل ( تورکېدل) جوړېدل ( جوړکېدل) .

٧ یو فعل درې مهاله لري ، تېر مهال ، اوسمهال ، اوستر مهال( مستقبل) .

٨ تېر مهال فعل : چې په تېرمهال د یو کار د کېدو اویا دپوې پېښې د پېښېدو څخه بیان کوي لکه ما ډوډۍ وخوړه ، احمد کتاب ولوست. په لاندې بڼو وېشل کېږي

مطلق، استمرار ،نږدې، لرې، احتمالي، یاالتزامي ،

٩ چې په اوسمهال کې د یو کار د کېدو او یا د یوې پېښې د پېښېدو څخه بیان کوي لکه: زه خورم، ته خورې، موږ خورو ، تاسې خورئ .

١٠ مستقبل فعل : چې په راتلونکي مهال کې د یو کار د کېدو یا دیوې پېښې د پېښېدو څخه بیان کوي . داوسمهال له ریښې څخه د / به/ په زیاتولو رغېدنه مومي .زه به خورم . ته به خورې ، زه به کښېنم ، موږ به کښېنو.

١١ امر فعل : هغه فعل ته وایي چې د یو کار په سر ته رسولو امر وکړي . اویا د یو کار سر ته رسول داستدعا اوخواهش په صورت وکړي. او دوه صیغې لري. مفرد اوجمع . لکه وخوره ، وخورئ ، وښه، وښئ ، ولیکه ولیکئ ، ووهه ، ووهئ ،ودرېږه ، ودرېږئ،

د مطلق او استمرار شکلونه لري .

مطلق شکل یې دفعل په سر کې د /wə/ مختاړی زیاتېږي.لکه ولیکه ،ولیکئ ، ولوله ، ولولئ .

استمراري شکل یې: د /wə/ مختاړي په لرې کولو سره تر سره کېږي. خوره ، خورئ ، ښېږه ، ښئ ، ځه، ځئ ،لیکه ، لیکئ ، وهه ، وهئ ، تړه، تړئ، ګنډه ، ګنډئ .

پوښتنې :

١ فعل څه ته وايي؟

٢ دفعل گرداني اړخونه کوم دي ؟ دمثاله سره يې واضح کړئ.

٣ فعل د بيان دطرز اوشکل له پلوه په څو ډوله دی ؟ د مثاله سره يې واضح کړئ.

۴ معلومه صيغه کومې ضيغې ته وايي ؟ د مثاله سره يې واضح کړئ.

۵ لازمي فعل څنگه تعريفولی شئ؟

۶ مجهوله صيغه د مثاله سره واضح کړئ؟

٧ مُتعدي فعل څه ډول فعل ته وايي ؟

٨ په پښتو ژبه کې دفعل د ريښې په باب څه پوهېږئ؟

٩ ترکيبي فعلونه په څو ډلو وېشل کېږي يو يو مثال وواياست.

١٠ ماضي فعل اود هغه ډولونه وواياست.

١١ حال فعل اود هغه ډولونه وواياست؟

١٢ مستقبل فعل او حال فعل په ريښه کې توپير لري او که نه؟

١٣ امر فعل اود هغه ډولونه په لنډه توگه وواياست.

# نتيجه او پيشنهادونه

د پښتو فونولوژي- مورفولوژي تر سرليك لاندې كتاب په اوو څپركو كې ليكل شوى دى.

په لومړي څپركي كې د ژبې په پيدايښت اودا چې ژبه څه راز پديده ګڼل كېږي خبرې شوې دي. همدارنګه د پښتو ژبې كې اصل اومنشاء په باره كې لنډ معلومات وړاندې شوي دي. همداراز په دې څپركي كې دګرامرونوپه ډولونو او په تاريخي لحاظ دبېلا بېلو ګرامرونوپه ميتودونو باندې رڼا اچول شوې ده.

په دويم څپركي كې د پښتو فونولوژۍ ، فونيم اوګرافيم او د فونيمونو په ډولونو باندې په تفصيل سره خبرې شوې دي او دكليمو په پاى كې ددغو فونيمونو دمورفالوژيكي ارزښت په باره كې بحث شويدى.

په دريم څپركي كې په لنډه توګه دصرف په برخه ، د مورفيم جوړښت مورفيم او څپه ، مورفيم اوكليمه توضيح اود نوموړو نومونو ( اصطلاح ) تر منځ توپيرونه په ډاګه شوي دي.

په څلورم څپركي كې دمورفيم په ډولونو او د هغې له جملې څخه په مقيدو يا تړلو مورفيمونو باندې بحث شوى دى . په جمله كې د دغو مورفيمونو موقعيتونه اودندې ښودل شوي دي چې دنوې ژبپوهنې د اصولو او معيارونو په اساس ؛ لبندي شوي دي چې دغه كار دپښتو ژبې په نورو ليكلو شوو ګرامرونو كې صرف تيوريكي بڼه لري نه تطبيقي.

په پنځم څپرکي کې په خپلواکو (غیر مقیدو) مورفیمونو باندې بحث شوی دی او دا د [illegible] برخې احتواکوي.

لومړی: نومیزې (اسمي) ډلې (نوم، صفت، ضمیر، عدد) او ددغو خپلواکو مورفیمونو ګرداني اړخونه او حالتونه په تفصیل سره څېړل شوي دي. او په دې برخه کې په څو محدودو مثالونو کې اکتفا نه ده شوې بلکې د ډېرو مثالونو په ورکولوسره د هغوی ځانګړتیاوې، اوړوني حالتونه په ګوته شوي دي. چې د ژبې زده کوونکو ته بې ګټې نه دي. په لومړي سر کې او ښتونکي نومونه دهغو د ځانګړتیاوو په پام کې نیولو سره ډلبندي شوي دي او په دویمه برخه کې ددغو اوښتونکو نومونوتصریفي بڼې چې په کوم وخت، حالت اوموقعیت کې اوړي کره مثالونو په ورکولو سره روښانه شوي دي. همدارنګه له فاعل اومفعول سره دفعل مطابقت اودهغه تصریفي شکلونه، ضمیر اګهغه ډولونه اود ضمایرو تصریفي بڼې چې په کوم حالت، موقیعت اوزمان کې اوړون مومي. واضح شوي دي. د عدد اومعدو د مطابقت ددې څپرکي یوه بله موضوع ده چې د پښتو ژبې د ځانګړتیاوو په پام کې نیولو سره په دې برخه کې په تفصیل بحث شوی دی. د صفت اوموصوف مطابقت اودهغوی ګرداني حالتونه د کره مثالونو په ورکولو سره روښانه شوي دي.

په شپږم څپرکي کې یوه بله اهمه موضوع چې قید دی څېړل شوې ده.

څو کوم ټکی چې په دې برخه کې د پاملرنې وړ دی هغه دا ده چې قیدونه په دوو برخو وېشل شوي دي. یو برخه یې اصلي قیدونه چې نه تصریف کېدونکي دي لکه د زمان قید - د مکان قید او د حالت قید. او دویمه برخه یې تصریف کېدونکي قیدونه دي یا په بل عبارت هغه نومونه او صفتونه چې په څېرمه ډول په جمله کې د قید دنده پر ځای کوي ډلبندي شوي دي او دا هم په ډاګه شوې ده چې دغه قیدونه که چېرې په جمله کې د لازمي فعل سره

راشي د جملې د فاعل له پاره تصريفېږي . لكه :

زه (مذكر) تود تود ګرځم

زه (مونث) توده توده ګرځم

موږ (جمع مذكر) تاوده تاوده ګرځو

موږ (جمع مونث) تودې تودې ګرځو

همدارنګه ځينې نومونه او صفتونه چې په جمله کې په ځېرمه ډول د قيد وظيفه په غاړه لري كه چېرې د متعدي فعل سره راشي د جملې د مفعول لپاره تصريف كېږي.لكه:

احمد ما (مفرد مذكر) پوخ پېژني

احمد ما (مفرد مونث) پخه پېژني

احمد موږ (جمع مذكر) پاخه پېژني

احمد موږ (جمع مونث) پخې پېژني

دلته پېژندل متعدي فعل دی .

په اووم څپركي كې د پښتو ژبې په فعلونو او د هغو په ګرداني اړخونو دفعل په اصل (ريښه) او دفعل په زمانو باندې په تفصيل سره بحث شوی دی.

په دغه برخه كې فعلونه د هغوی د اصل پر اساس ډلبندي شوي او په درو برخو وېشل شوي دي .

١ هغه ډله فعلونه چې په تېره او ناتېره زمانه كې خپل اصل نه بدلو ي لكه: تړل ، ګنډل ، ليكل، وهل ، او داسې نور.

٢ هغه ډله فعلونه چې په تېره او ناتېره زمانه كې خپل اصل (ريښه) بدلوي يعني ريښه يې په نا تېره زمانه کې او په تېره زمانه كې خپله بڼه اړوي . لكه: اغوستل (اغوند- اغوست) لوستل (لول- لوست) اوبنتل (اوړ . اوبنت) نيول (نيس- نيو) او داسې نور.

۳-دریېمه ډله فعلونه : ترکیبي فعلونه دي چې یو توك یې ( لغوي عنصر ) نوم یا ستاینوم او بل توك یې د کېدل مرستیال فعل دی . چې دا ډله مجهول فعلونه دي . لکه : خپرېدل- خښېدل- ورانېدل( خپور کېدل – وران کېدل – ددغې دریېمې ډلې نور فعلونه چې لغوي عنصر یې نوم یا ستاینوم او فعلي عنصر یې د کول مرستیال فعل دی . لکه کړول ـ تودول ـ ړندول ـ ( کوږ کول) (تود کول) ( ړوند کول) . دا ډله فعلونه متعدي دي.

په نتیجه کې ویلی شم چې دفعلونو دغه تصنیف د هغوی دمورفالوژیکي جوړښتونو په اساس شوی دی او زده کوونکو ته د ژبې د زده کړې په وخت کې ډېرې اسانتیاوې برابروي . پاتې دې نه وي چې دغه کار هو ببخي نوی کار دی او دپښتو ژبې په نورو لیکلو شوو ګرامرونو کې نه لیدل کېږي . په دغه برخه کې د هرې ډلې فعلونو مورفالوژیکي ځانګړتیاوې په مثالونو کې ښودل شوې دي.

# پېشنهادونه ( وړاندیزونه)

د ژبپوهنې د نوو معیارونو په اساس د یوې علمي با صلاحیته ډلې له خوا د پښتو ژبې د یو جامع ګرامر تدوین اولیکنه .

د پښتو ژبې د کلاسیکو میتودونو پر اساس د پښتو تاریخي ګرامر لیکنه. د سبك پېژندنې او تاریخي میتونو په تدریس کې له هغه څخه ګټه اخیستل.

د یوې علمي او باصلاحیته ډلې له خوا د پښتو ژبپوهنې د اصطلا حاتو د قاموس برابرول.

ددرسي موادو د چاپولو له پاره د پښتو تايپ برابرول او تهيه کول همدا مشکل اوس ددغه اثر په ليکنه کې چې پښتو تايپ نه و په لاس وليکل شو.

ګله چې ليدل کېږي په اوسني کمپيوټري سيستم کې دپښتو خاصو ږغونو له پاره ګرافيمونه (توري) په نظر کې نه دي نيول شوي نو په دې برخه کې بايد د پښتو مروجه ګرافيمونه په کمپيوټري سيستم کې ځاى کړى شي.

# مأخذ او مراجع


۱- الهام محمد رحيم : روش جديد در تحقيق زبان درى کابل : پوهنځي زبان و ادبيات ، مطبعه دولتي،.۱۳۴۹

۲- تړي ، حبيب الله : له فاعل او مفعول سره د فعل او قيد مطابقت : کابل مجله ، ش ۱۱ ، پښتو ټولنه ، دولتي مطبعه ، ۱۳۵۷

۳- خويشکي ، محمد صابر : مطابقونه کابل مجله ، ش ۴ کابل دعلومو اکاډمي دولتي مطبعه ، ۱۳۶۰

۴- دوست شينوارى : د افغانستان ژبې اوتوکمونه : کابل پښتو ټولنې دولتي مطبعه . ۱۳۵۴

۵- رښتين ،صديق الله : پښتو ګرامر کابل وزارت تعليم و تربيه . مطبعه معارف ۱۳۷۰

۶- زيار _ مجاور احمد : پښتو پښويه : کابل : کابل پوهنتون ، دلوړو زده کړو چاپخونه. ۱۳۶۲

۷- زیور ، زرغونه : پښتو گرامر کابل پوهنتون ،مطبعه پوهنتون . ۱۳۶۰
۸- منصور ، اختیار ، معنی شناسي ، تهران : منوچهر ۱۳۴۸
۹- یمین محمد حسین : دستور زبان دری ( بخش صرف) کابل : مطبعه پوهنتون ۱۳۶۵
۱۰- یمین ، محمد حسین . دستور زبان دری ( بخش نحو ) کابل مطبعه پوهنتون ، ۱۳۶۵



# پښتو غږ پوهنه او ویيپوهنه

استاد پوهنوال محمدصابر خویشکی دکابل پوهنتون دژبو او ادبیاتو پوهنځي دپښتو څانګې یو پخوانی او تجربه کار استاد او له ۲۵ کلونو راهیسې په پښتو څانګه کې پر تدریس بوخت دی. استاد خویشکي دخپل تدریس په بهیر کې زیات وخت پښتو فونولوژي ـ مورفولوژي (صرف) او پښتو (نحو) تدریس کړي دي. ده نه یوازې په پښتو څانګه بلکې د کابل پوهنتون د نورو پوهنځیو په ځینو څانګو کې چې پښتو په کې د یو مضمون په توګه تدریسیږي، اوږده موده تدریس کړی او د پښتو تدریس ښه پخه تجربه ورسره مل ده. داکتاب یې هم دپوهنوالی علمي رتبې تیسس او هم د همدغه ۲۵ کلن تدریس او ګڼو تجربو نچوړ دی چې پښتانه او ناپښتانه محصلین ترې ښه ګټه اخیستلای شي.

په کتاب دې کې پښتو غږونه، دهغو شکلونه، ویيونه، وییکي، تاړي، د نوم ګردان اړخونه ، دنومونو وېش، ضمیرونه، قیدونه، فعلونه، دجنس او زماني له مخې دفعل حالتونه، لنډه دا چې د(غږ)او (کلمې)، ټولې خواوې په ښه مفصله توګه څېړل شوې دي. دا نو د پښتو (صرف) په برخه کې یو بل منظم ، سیستماتیك او ګټور کتاب دی، چې په ډېره روانه اوپسته ژبه لیکل شوی او هرچا ته ترې ګټه اخیستنه شونې ده.

هیله ده استاد پوهنوال محمدصابر خویشکی دپښتو ګرامر دالړۍ دجمله پوهنې (نحو) تر برخې پورې ورسوي اودپښتو ګرامرونو په لړۍ کې یوه بله غوره زیاته وکړي.

په فرهنګي مینه

پوهنیار محمد اسمعیل یون


د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه - جرمني

VEREIN ZUR FORDERUNG DER
AFGHANISCHEN KULTUR E.V

د خپرونو لړ (۳۲)